# د پښتو د ژبې لیاره

لیا

# پښتو صرف او نحو

مؤلف :- محمد گل مومند

بلغ : ١٣١٧

نورے ژبے زده کول که ده ی کمال
خپله ژبه هېرول بے کمالي ده

د (صافي) عبد العظیم په اهتمام آو لیکلو سره په لاهور کښې چاپ شو

#6, Kabul letter
30 Nov. 45

# دپښتو دژبې ليا ره

ليا

# پښتو صرف آو نحو

بلخ : ۱۳۱۷

مؤلف : محمد گل مومند.

نورے ژبے زده کول که ده ی کمال * خپله ژبه پرېښول بے کمالی ده

د (صافی) عبد العظیم په اهتمام آو لیکلو سره، د بلخ د شرکت رښتیا له خوا په لاهور کښے
طبع آو له بلخه شائع شو

301

# بسم الله الرحمن الرحیم

## مدخل

(ننه توځی)

جوته خبره ده چه ملتونه یو دبل څخه په ډېرې سره ښکاره یعنې لرېنۍ او د هر یوه امتیاز د هر یوه ملت همدغه ډېر ده نور خصوصات او خصوصیات او پاتې امتیازات او ممیزات نور ددغه نور روښانه دي، او ورسته ملي ډېرې تر اثر او سیوری لاندې پاتې کیدای شي. نو دیوه ملت ډېر هرڅومره چه ځل مینده کي هماغومره ملي خصائص او خصائل او نمیزه اوصاف ئې ځل مینده کوي.

— دیوه ملت په ډېرې ګنې هرڅومره چه دبل ملت ډېر نفوذ مینده کي هماغومره سیاست، اقتصاد، اجتماعیات، ملي اخلاق، ملي اداب، ملي عادات، ملي رسومات او عنعنات، نور ملي خصائل او خصائص، حتی چه ذهنیت، افکار، حسیات او مدنیت ئې نفوذ مینده

کوي او هغوی مره د هغې ژبې خاوندانو نامرئي برهي او غلبه د دغې بلې ژبې پر خاوندانو تأمينوي. او که د يوه ملت ژبه د بل ملت ژبې ته مغلوبه شوه گنړه هغه ملت په ډغو پاسنو لو خصوصاتو کښې ورته پېښ شو. علی الخصوص که اقليتو نه هم د هغې ژبې د خاوندانو په دغه ملت کښې وي نو سياست، معارف، مهمې او کوچنۍ اقتصادي چارې، او په برخه ملي پانګې، ټوله د هماغه اقليتونو په لاس لوېږي نو په دغه حال کښې تمام هوساتوب آورامتيا، ځواک، عزت او مرتبت د هماغو لېږدوي او د رست مشاق او مزاحم، ټوله نا هوسايي د هغه خوار اکرب بې وزلې ملت وي.

د پرلوي ملت د هماغه لېږو د ګټې د پاره به استعماليږي. دوی به تل سوکړک خوري، پېټي به وړي، او هغه نور به خوږه وږلي او ګيلګي تفري. دوی به بربنډ ګرځي او هغوی به ورېښمين کالي اغوندي. دوی به کودۍ نه وي، د هغوی به بنګلې ولاړې وي. دوی به کلهي نه لري، د هغوی به بنارونه نه بسېږي. دوی به پلي ګرځي، هغوی به ګړندي ګاډي ځغلوي. هغوی به په پرېنګلي ناليو، پر لينديزو ناستو وساوو پچير ناست او دوی به مرئي پېشان د تقنولار وي او په دوچه ځمکه پر توره خاوره به هم کېناستلای نه شي.

میرېنې ته به د دوی ورځ وی، ویښنې به د دوی زړ پېږی، ایجادوکې به د دوی د ښکلو
ظلمو خاورے کېږی. چرچې به ښوی کوی. ګټې، عزت به د ښوی وی لکه چه متل دهٔ وی
(توره به لالا وهی. نړی به عبدالله وهی). په عین واکداری کښې به بې
واکه، په عین وطن داری کښې به بې وطنه وی. په خپل وطن کښې به غریب او پردیس
وی. ښځې بنه وی نه اشنه د ندوینه به د نورو او تورو غړونه او ښکن رغونه، وچې مېرې
او سپېره د اګونه به د دوی وی. په خپل وطن کښې به محکوم او هر ګوره به مظلوم وی.
خپل به ورته پردهٔ ی شی ځکه چه په نامه که څه هم خپل وی خو افکار، احساسات، اقوال،
اعمال او افعال ئې، آغوسته خواره ئې، خواک او ژوندون ئې بشپړ پیا ګرځېدلی
د پردی او دبل وی. په خبره پېره نه پوهېږی، که و پوهېږی سره به نه جوړېږی،
خو به ئې نه دوا کېږی نار و عتیا به ئې نه رغېږی. په زګېر دو باندې به کوټکو نه
خوری. په خپل وطن کښې به خوار او د خپل او د پردی په سترګو کښې به بې مقدار وی.
څه به شی ګڼلای که ئې وګڼی نه به ئې شی نغړلای او ځغلای. زیار به د دوی وی خواک
به د نورو. علم او مدنیت، ثروت او عزت به د نورو وی او اصلی وارثان د ښځې

خاورے، چه ځمکه ئې د دوی په لاس وکو اپه گزو نو ځمه شوے وی، د ښاورو په شان بگرځی. د ښاورو پخېر نه حتے چه د ښاورو نه به هم په به د دول سره د نورو د گټو د پاره استعمالیږی. د ځینو ښاورو به قدر وی خو د دوی به نه وی. د ښېل آو د پردی زړه به پرے سوزی. خلک به ورته د سترگو نه د وینے توبه وی. ښېته د ے وی خدای ته، د ے نه گورے آو ورشے د غه سے ځای ته.

د غه سے ملت به د ورځ په ورځ چو کېږی تر څو چه محو شی. سړی چه مری ام کېدل آو ساه سپارل چه ئې هم آسانه شی لا یو څه د ه ی، خدای د ے د بغې مړینے نه سړی د ساتی چه لاس آو پښے غورځوی آو په آسانه سره ئې ساه نه ښېجی.

هر څه چه وی د ملت سعادت، سلامت، عافیت، راحت، عزت، ملی شته والی، هر د ول لوړوالی، د ملی شئونات پایښه، د وطن ساتنه، په عزت آو هوساینے سره ژوندون. په عزت سره مړینه آو د وړی تخته په بنا م سره تنگ آو نور، ټول ملی یو والی پورے، مپته پورے آو هغه هم ملی ښبے پورے ئې اړه لری، لکه چه پاس د ویل شو که ښبے خل مینده کړ، د غه ټول خل مینده کوی آو که محوه شوه ټول

محو کېږي آو د هغه ملت نوم آو نښه د نړۍ د مخ څخه ورکېږي.

ژبه هر څو مره چه بشپړه وي د هغه خصوصیات هم هاغومره بشپړ آو تر امنیت لاندې وي لند وې دا غه ده چه ژبه د ملي موجودیت، هوساتوب آو سعادت، د لوړوالي آو جګ والي سند ده.

نو ژبه باید وساتل شي، وپالل شي، وروزل شي، تازه کړل شي، علمي شي، ادبي شي، په هر حیث سره د ملت د رستواریو آو احتیاجاتو ته کافي شي.

هوس راشو چه ژبه څنګه ساتله کېږي؟ ژبه وغه ساتله کېږي چه ټول لغات آو اصطلاحات ئې قید آو صرفیه آو نحویه قواعد ئې ضبط شي. ادیبان، عالمان، پیاوړي آو پوهان ټول ئې ساتنې ته ځان اړ وبولي آو متخصصین آو اهل خلک ئې په اړت والي باندې دا رسېنې (احتیاج) آو د زمان د اقتضا په موجب کوښښ وکړي، زیار وکاږي آو پرې بږدي چه د خپل دود آو قاعدو په بېنډ سره وده وهیله شي آو څوک بې ځایه آو بې اصوله تصریفات آو تصرفات په کښې وکي. د غه لوی ننګ آو غیرت دی.

ننګیالهٔ ی سړی خپل عزت آو مرتبت، خپل امتیاز آو مزیت پېژنی په ګڼنے آو ساتنے باندے نے پام کوی آو زیار کاږی د پروی عزت آو مرتبت، د پروی امتیاز آو مزیت، پرده ی آو دبل ده ی، هغه دچا نه خپلېږی، خپل امتیاز نه پېژاندل، دبل امتیاز آو ممیزات خپل ګڼهل، سرلوی واله ی پرے کول، په هغه باندے خان بناغه ی آو ممتاز بولل، په ساتنے یے خان ستړه ی کول، بلکه مال آو سر جارول آو خاورے کول... ده ګی.

پوه سړی خپل آو دبل مال پېژنی. دخپل مال ګرانښت آو ساتنه آو پالنه د پوهے آو غیرت څخه ده ی. دبے غیرت سړی مال ته که څوک څه نقص ورسوی یا یے بشکاره یا په غلایوسی آو بوزی لـه بے همتی، آو بے غیرتی ځنے پسے نه ګرځی، که څوک څه ورته دوائی چه پسے لاړ شه، خپل مال یا یے تاوان واخله متجاوز سره جګړه وکه، تجرّ اورکه. (سے بابا) وائی آو یو څو ګیلے کوی، نهایت وائی خشکه نے کم، آخره زمانه ده خلق سپین سترګی شوی حلال آو حرام نه پېژنی، بے موجبه پر خلکو باندے تعدا آو ناروا کوی، پرده ی مال په ناروا سره خوری، که څه وو اے بیا خپرے هم لګوی، په جنګ نه چه دچا په وژلو هم امر آو ایسار نه دی، بلا ورپسے څما رزاق خدائ ده ی هغه به په آخرت کښے خپله جزا ووینی.

که څوک کونے تښے لاندے کی هم څه نه وائی بلکه خپله پلو ور خوشے کی آو د هغه سړی
په کوم چل ییا د سړے سره ورو ورو کوۓ آو په ور وسته کښے کور خوشے کی آو د بل
گاونډی شی ییا کو دی وو بی . دو غه سے سړی د رست مال خلک خوری ، د پلار آو
نیکه نه ور پاتے دولت ، خانی ، عزت ټول تښے ځی آو د پولی ټک آو خواست کوندی ته
کښنی ، بیا به د پردو ور وته منډے وہی .

غیرت ، لوړ همت ، او غه پوهه ( عقل سلیم ) د غه نه منی آو نه په پریږدی چه څوک
خپل مال خوشے کی چه ور وست شی ، ور ته نقصان وړسی آو خلک نے بنکاره ییا په غلایو سی
آو کو رتښے لاندے کی . آو د ه ی د پردو د و د ی پخوی ییا د پردو تر کښوے لاندے اور
بلوی آو بیا دهغوی سوی آو پاتے شونکی ته ناست وی آو .... په شان کوندی ځښی .
غیرتمن سړه ی خپله وُچه د پردی پر لند و نه بولی خپل زور د بل تر نوی بنه گڼر گا که بل څوک
لنده ییا نوه ی ور ته زاوړی نه نے منی بلکه سپکه نے بولی . کوشش کوی چه خپله وُچه
آو خپل زور په خپل زیار سره لنده آو نوه ی آو خپله زره کودی کونی مانړی بنگله کی .
د سوی آو پاتے شونکی په خوړو آو د بل د کوندی په څښلو په مجلس کښے د خپل مرتبت

د اظهار، دپاره بیا آر بری ولیستل آو ښغونه وبل آو دپردی په کالو سرلوی واله ی کول ناپوهي
بے همتی، ذلت آو خواری ده.

د غه عمومي ملاحظات دګا وډ ښبے په خصوص کښے، خو خبره او برده شوه په د غه کښے
لږ څه د اصل موضوع نه لرے ولو بدم، بهوس د خبرے واګه ی بېرته خپلے موضوع خواته
ګرځوم چه هغه د پښتو ژبے موضوع ده.

بنکاره ده چه د پښتو په باره کښے تر د غه محلے خوراد بره ناپامي آو بے غوري حتی چه
د هر ظلمونه شوی. اما د غه چاکری آو ځنګه شوی هغه بیله او بږده خبره ده. د غلته ځما مقصد
د غه ده ی چه د پښتو ژبه ساتلے شوے نه ده. د بڅوا نه لږ آثار پاتے دی، کېدای شی چه
د پر بېوه خو د دښمنو آو د باندینو جګړو په اثر سره به ورک شوی وی د غه آثار چه پاتے دی
تقریباً ټول د د غه نږدے زمانے آو د یو څو معدودو نظم آو نثر آثارو څخه عبارت دی چه نه
هم نثر په پښتو نه دی بلکه په د پرو کښے ئے بے له معدودو الفاظو آو څو ضمائرو آو ځینو
اداتو آو توریو د پښتو نوره څه مبهمه برخه نشته. علمی آثار لږ پاتے دی آو هغه هم لکه چه
ذکر شو د نږدے آو لنډے زمانے دی. لغتونه ئے قید آو صرفیه آو نحویه قواعد ئے

ضبط شوی نه دی.

ما ته تر هغه پورې دغه کوم صرف او نحوے کتاب پته معلومه نه ده چه پښتانه سړی دے خپل د ژبې د ویلو او لیکلو په اثر لیکلی وی. د ځینو پردو له خوا که ځینے لیکل شوی دی خو ته ده چه هغه هم تم او بشپړ نه دی.

د پېښور په دده او د اباسیند په غاړه کښے د پردو په غوښتنے یا امر که څه لیکل شوی وی هغه برسېرن (سطحی) لیکل شوی ځکه چه د زړه له مینے او د ملیت له ارمینے څخه د ژبې د ویلو او لیکلو ځان ستره ی کولو په اثر او نتیجے لیکل شوی نه دی نو نه د غه چه بشپړ بلکه تم او صحیح هم نه دی. دا ډول ے یو صرف او نحوے کتاب په اردو ژبے لیدلی چه هغه هم د پردی په غوښتنے او د غیر اهل ژبے له خوا لیکل شوی او د څه اهمیت جائز او د کوم قدر او قیمت لائق نه دی، په هر حال سره له دے چه د خپلو او خپلوانو او د کام او عزیزانو په صحیح کښے یو بو پښتو په چاپیر (محیط) کښے لوی شوی یم، نو ځکه ټول معلومات په پښتو کښے له سره بشپړ نه دی. په ورو کښے کښے مے پار سو د یره او پښتو ژبه ویلے که وایم چه پر ما دغه د پښتو زاغلی چه په میاشتو ځه. چه په کلو نو کښے هم د پښتو خبرے نه دی

کړی ، مبالغه به نه وی ؛ د خپلو او خپلوانو نه ړے د کابل په ښار کښے لوی شوی یم.
عزیزانو سره که څه هم نه دہ شلېدلے خو د هره ښېګه هم نه دہ. هو کښے پښتو مے زده وه
خو لږه ، وېلے ی مے شوه خو لږه وېلو له لا مله کړې کچه وه ، اما وروسته په لوی والی کښے
چه پرے پوه شوم د پښتو او خپلو عزیزانو سره مے لاره مینده کړه ، پښتو ته مے مخه وکړه
او خپل معلومات مے څه په کښے د برکړل خصوصاً د ګرانو عزیزانو غښتلو شینوارو په غور څه
وینی کړم . که څه هم هوس مے ترے وے د بے پوره اختصاص په کښے میندلی
او د هری عزیزان ما متخصص بولی خو بیا هم پوهېږم چه زما معلومات په پښتو کښے بغه
چه لازم دی لا بشپړه نه دی . صرف دغو مره دی چه زما کارنګیره ی پرے چلېږی.
زما علمی استعداد هم کافی نه دی ځکه تحصیل مے منظم او مکمل نه وه په هر حال سره له
دیره نه نګیرتیا او عجز، خپل همت مے ټینګ کړی نه دی په جرئت سره د چارے
د ګی (میدان) ته وتلی یم او غوارم چه علمی او ادبی خدمت خپلو پښتنو ورونړو ته وکړم ؛
ځکه چه پښتانه عالمان او ادیبان د چارے په د ګی او د ګر کښے لږ دی . نن ورځ د غه
نګیری چو پره ته ډیر ضرورت دے . نن ورځ د فداکارۍ ورځ ده بنائی چه نه بیا نا بوده

نامه ته ورننوتل شي او د لیکوني په څېر د ملت چوپړ په ښه نیت او سم نصب العین وویل شي نو دغه ده چې پر لوی خښتن مې توکل کړی (د سینډ) د تألیف نور وروسته مې د پښتو صرف او نحوې په تألیف پیل وکړه او خاوند تعالی لې په خپل لطف او کرم سره توفیق را کړ.

دغه کتاب هم په هغه وخت کښې د پښتنو عزیزانو او د پښتو د شائقینو د استفادې د پاره تیار شو او د اعلی او د گرته وُ ووت. دغه وخت هغه والهی دغه ده چې د پښتو نهضت او خوځېدل په وطن کښې قوت مینده ی او دغه نظریه چې (ملي امتیاز، ملي شته والهی، ملي یووالهی، ملي لوړ والهی، د پښتو او پښتو والی پالنه او پاینه، د پښتو ژوندانه، ملي عزت، د پښتانه هوسا توب، د پښتانه سعادت ...... الخ پښتو پورې اړه لري) مینده شوې او ویو دې دلې په لکړی کښې نه ځای نیولی او ورځ په ورځ خپرېږي او عمومي کېږي. مخصوصاً د علمي اعلیحضرت پاملرنه او پالنه د پره او د پراهمیت وړ ده.

نو له څرګنده ده چې د شاهانه فرمان په اثر پښتو په درسته مکاتبو کښې جاري شوه او غوښتل کېږي چې د معارف درست کتابونه په پښتو واړول شي او له دغه وروسته

 



زده کړه نوله په پښتو شي . همدغه سبب دکابل په ټولو دوائرو او د مملکت په ورستو ټو کښې زده کړه ئي پر اختيل شوه او غوښتل کيږي چه له دروکالو وروسته په ستو پښتون يا نړے (افغانستان) کښې پښتو ، د پښتانه د حکومت رسمي ژبه وګرځي .

څنګه مننډي ټولواک (صدر اعظم صاحب) د اعليحضرت د دغه نظريا تو د عملي کولو د پاره د هر کوشش کوي ؛ د معارف وزارت هم خپل سبک لګوي ؛ همدغه سبب نور رجال هم شته چه په خپل وار سره د دغې خواته پام لري او هم يوه د له پښتانه د پښتو او پښتو الي د چوپړ د پلو د پاره حاضر او تيار شوي .

د پښتانه او د بغه چا چه پښتو زده ، کوشش د ه ي چه خپل معلومات په پښتو کښې د هرې او علمي او ادبي جامه او کاښره ورواغوندي او چا چه د خپل ليا دبل د نا پا مي په اثر په پښے او بهره کړے ليا تغنے نيم ګړے پاتے شوے ليا ئے نه زده غوا ري چه په آساسي د ول سره ئے زده او بشپړه کي په دغه وخت کښے هرڅوک پښتو کتابونه لټوي مګر افسوس چه د پخوانو د غفلت او ناپا مي په اثر کتابونه او نور وسائل د هر لړه بلکه د نشتے په قطار او د لے کښے دي ؛ علی الخصوص د ژبے ليا ره چا ته نه ده معلومه ، د ژبے

قواعد غونډ شوي او ليکل شوي او د کتاب په ډول چاپ شوي نه دي د خلکو خواره
واره معلومات تر بوسه غونډ شوي نه دي او د ملرني توب له لامله تتبعات هم اختلاف
لري . فرصت لا مساعدت نه دی کړی چه مختلف افکار په يوه مرکز غونډ شي او په يوه شي
قناعت او د بعضو په اثر سره فکري اتحاد حاصل شي نو ګونډې د دغه کتاب د پرې ښلې
لوستونکي په لمړي سر کښې په ځينو موارد د وکښې معترض شي او قناعت ئې رانه شي او
د بعضو تتبعات د دغه کتاب سره بېښند ه واقع شي اما که تعصب يوې خوا ته کېښودل شي او
بې ځه حوصله وشي او زر حکم ونه شي يقين لرم چه تر ځه تلو او پلټلو وروسته قانع شي او موافقت وکي
د دغه له لامله چه ځما په لاس کښې آثار نه وه چه ما تنې څه ګڼې او تفتيش او استفادې
کړې واى نو و پېلاى شم چه د پښتو د ژبې د ليار و او قواعدو په غونډولو کښې د هر
ستړي شوي يم ځکه چه د هره لټنه او پلټنې نه غوښته، د دغه کتاب په ترتيب کښې
البته د پرديو ژبو د کتابو نو نه استفاده شوې او په بعضه ترتيب سره ليکل شوي، اما پوهان
او علما صاحبان پوهېږي چه د ژبې ليار ه (قواعد) څه د ترجمې کار نه دی چه د بلې
ژبې څخه ترجمه شي، کېدای شي چه ځما تتبعات بشپړ نه وي لېا څه را نه پاتې وي نو ځکه به هم

د غه حکم نه کوم چه د غه کتاب سره غلطي او سهوه نه لري . هر څوك چه وي څه چه د پښتو او
پښتنو پوهانو نه ئي دين او خادم يم خان مسعود بولم چه په دغه سره وخت کښې څښتن تعالی
جل وعلی ما ته دو غه کتاب د تاليف توفيق راکړ هيله کوم چه د غه کتاب د استفادې موجب
وګرځي او د پښتنو او د پښتو د شائقينو د خوا يو کوچنی چو پړ وګڼل شي که خدای کول .

د غه هم وايم چه دو غه کتاب په تاليف کښې څارونکي ( محمد قاسم خان - ابراهيم خيل . )
د هره مرسته راسره کړې او څه د هر تفتيش خو هم دده خدمت په دغه کتاب کښې د قدر
وړ ده ی .

همدغه سې ( ملا عبيد الله خان صافي ) هم په خپل نوبت سره مرسته کړې او
ځينې نور کسان هم چه چهنې شوی څه معاونت ئې چه ولاسه کيده کړه ی .

د غه کتاب فضيلت مآب مولوی سيد محمود خان د سرشائی د ننګرهار او فضيلت مآب
مولوی محمد وزير خان پياروخيل د ميدان او ځينو نورو پښتنو علما صاحبانو هم ليدلي او
تصديق ئې کړه ی .

هو الله تعالے

## لمړی برخه

# پښتو صرف

پښتو صرف ـ د هغه علم دی چه د پښتو د سم ویلو او سم لیکلو د پاره اصل کلمات او د اشتقاق د ول (۱) ئے ښئی.

تورکی (۲) هغه غږ ته وئیل کیږی چه یوځل له خولے وه ووځی او یوه یا څو توره او یوه خوځندی (۳) ځنیے عبارت وی.

مثلاً: (خه، آس، بلخ) یو یو تورکی لری او (مالک، کابل) دوه دوه تورکی لری او (ننگرهار، پېښور، کندهار) درے درے تورکی لری.

---

(۱) د یوے کلمے څخه بله کلمه وایستل په دغه شرط چه لفظ او معنا یو د بله سره د مرتب ولری.
(۲) هجا، (۳) حرکه.

# توری (۱)

توری : یو څنګالی (۲) دی چه ننګ ته پېښېږی د بل ننګ څخه چه په پوستوالی یا کلکوالی د ښه په څېر دی د هاغه څنګالی په واسطه سره بېلېږی .

پښتو توری ـــ د پښتو توری د هری خوا هاغه توری دی چه په پاسرسو یا عربی کښې استعمالېږی خو هغه توری چه د عربی د ژبې مخصوص دی لکه : (ث ، ح ، ذ ، ص ، ض ، ط ، ظ ، ع ، ف ، ق ) په پښتو کښې نه استعمالېږی ، نو که چېرې د عربی کومه کلمه په پښتو کښې استعمال شی چه پاسنی توری په کښې وی نو پښتانه دوغه لاملا چه دوی خپلې مورنی ژبې کښې دغه توری نشته آو هیلا ی سې نه شی : ث په س ، ح په الف یا په ه یا په خ ، ذ په ز ، ص په س ، ض په د یا په ز ، ط په ت ،

---

(۱) حرف ، (۲) کیفیت .

ظ په ز، ع په الف . ف په پ . ق په ک بدلوي .

هره کلمه چه و پاسنو لسو توره څخه ( چه عربي ژبې له مخصوص دي ) په کښې

دي هغه کلمه به پښتو نه وي ، عربي به وي .

د پښتو په ژبه کښې دېرش توري چه اشکال ئې په لاندېنۍ دول سره دي

استعمالېږي .

# اب پ ت ټ ج چ ځ څ ح خ د ډ ذ ر ړ ز ژ ږ س ش ښ غ ک ګ ل م ن ڼ و ه ی .

دغو ته پښتي ليا د ( لوړکي توري ) وييل کيږي .

په پښتو کښې د ( واو ) توره ي د تلفظ په اعتبار دوه رازه ده ي :

مجهول واو ، معروف واو .

۱ـ مجهول واو هغه ده ي چه پوست تلفظ کړشي آو د توري غږ ( بوغ )

د بر کلک آو ثقيل څرګند نشي لکه : مور ، کور ، اور په کلماتو کښې .

۲ـ معروف واو هغه ده ي چه د توري غږ ( بوغ ) کلک آو ثقيل

ځرګندشي لکه د : لوګړی، څومره، شوندوه په کلماتو کښې.

په لیکلو کښې که څه هم تر هوسه د دغه توروبېلتون چا نه دی کړی ګر ځما په څرګند بېلول لږ ورته بلکه ضروري ښکاري څه چې پل خیال سره د غه سې ورته مناسب ګڼم چه مجهول داو : پاره د ــــــ بر سیره یو لګه ی آو معروف واو د پاره د ــــــ بر سیره یو : همزه ولیکله شي.

تنبیه - په پښتو کښې څلور ډوله یې ګانې دي.

۱ - مطلقه یې ده لکه د : یو، سړی، خوی، په کلماتو کښې.

۲ - معروفه یې ده لکه د : چینه، خنکی، په کلماتو کښې.

۳ - مجهوله یې ده لکه د : مینه، ځېږنده(۱) میلمه، چېرے، په کلماتو کښې.

۴ - تأنیثي یې ده لکه د : دودی، نری، په کلماتو کښې.

په پښتو کښې توري د ځنګالي په اعتبار سره پر دوه برخو بېلیږي : مذکر توري، مؤنث توري.

---

(۱) منبع، اولاده.

۱- مذکرتوری :

ا، ج، ډ، د، س، ش، غ، ک، ګ، ل، م، ن، ښ، واو، ض،
ص، ع، ق .

۲- مؤنث توری :

ب، پ، ت، ټ، چ، څ، ځ، خ، ر، ړ، ز، ژ، ږ، ښ، ه، ی،
ث، ح، ط، ظ، ف .

توری په لیکلو کښے پر دوو برخو بیلیږی : یوے ته ئے (ننښلی توری) او بلے ته نے (نښلی توری) وییل کیږی .

ننښلی توری - هغه توری دی چه په لیکلو کښے د وروستنو تورو سره ننښلی
چه هغه هم (لس) او دغه دی (ا د ډ ر ړ ز ژ ږ و ذ) .

نښلی توری - هغه توری دی چه په لیکلو کښے د وروستنو تورو سره
نښلی او هغه د ننښلو تورو مخه پرته

پاتے نور توری دی

# د تورو ولونه

توری به د مذکورو برخو په لاندینو ولو نو آو را زو نو بیلیږی :

سره نږدے توری ، سره لرے توری ، د شونډو توری ، ګرندی توری ، د ستونی توری ، سره ورته توری .

سره نږدے توری — هغه توری دی چه و تو ځی (۱) ئے سره نږدے وی لکه : (څ ، ځ) (د ، ډ) (ض ، ظ) .

سره لرے توری — هغه توری دی چه و تو ځی ئے سره لرے وی لکه: (ب ، خ) (ک ، م) (س ، و) .

د شونډو توری — هغه توری دی چه په شونډو و ویل کیږی لکه : (ب ، پ ، ف ، م ، و) .

ګرندی توری — هغه توری دی چه په و ییلو کښے ئے شونډے آو ژبه ګرندی شی لکه : (ب ، ر ، ف ، ل ، م ، ن) .

---

(۱) مخرجونه .

دستونی توری — هغه توری دی چه په ستونی سره تلفظ کېږی لکه : (ح، خ، ع، غ، ه، ء).

سره ورته توری — هغه توری دی چه غږونه ئے یو له بل سره ډېر ورته وی آو هغه هم دغه دی :

ا ء ع ه

ت ټ ط

ث څ س ص

ح خ

ر ړ ل

ژ ږ

د ډ ض

ځ ذ ز ض ظ

ن ڼ

چه اته ویشت توری آو په املا کښې د د پروګرانیو سبب ګرځي چه مو بږ د هغه وبیسته کولو دپاره ترپوه ځایه پورې چه کیدای شي په لاندې ډیو لیکو کښې نې تفصیلات لیکو:

الف — په عربي کښې هغه الف ته چه خوځنده ی ولري (همزه) آو هغه الف ته چه خوځنده ی و نه لري الف وائي، اما په پښتو کښې د پږي وخت همزه نه مد ځا وغه شکل (ء) وي آو کله کله د الف پرځای هم استعمالیږي.
الف دوه ډوله دي یو لنډ[1] الف بل دوهم اوږد[2] الف .

لنډ الف هغه دی چه سر کښې راځي آو لوړ کړی (۳) والا یا کوږ کړی[4] والا یا کږ کړی (۵) والا وي لکه د: (انګور، اوبه، ایندار ه) په کلماتو کښې

اوږد الف هغه دی چه اوږد تلفظ کیږي آو د مد نښه پرې (~) لیکه کیږي لکه د: (آلو بخ، آستازه ی، آرتول) په کلماتو کښې.

---

(۱) مقصوره، (۲) ممدوده (۳) فتحه (۴) کسره (۵) ضمه .

هغه لنډ الف که د کلمې په وروسته کښې وي او بړ د ګنړل کېږي لکن مذ پرې ليکل کېږي : رنړا ، اژدړا .

که د الف توره ی د کلمې په سر کښې راشي آو وروسته د (ی) توره ی وی کله کله ئې د همزه په ډول ليکل جائز بلکه مرجح ده ی لکه د (ئيره) په کلمې کښې آو که منځ کښې راشي نو قاعده ده آو ضروره ی لکه د ګئيز په کلمې کښې . په دغه سې ځايو کښې الف په (ی) هم ونجهه ه ی شي .

ع — دغه توره ی عربانو لره مخصوص ده ی په پښتو کښې نشته لکه چه مخکښې ذکر شو په هره کلمه کښې چه دغه توره ی وی هغه کلمه به عربي وی هغه کلمات چه دعربي نه آخيست شوي وي آو دغه توره ی ولري که په پښتو کښې د دغه توري پر ځای الف ويکل شي عيب نه لري آو جائز ده ی .

ه — د هري وخت ځينې خلک د دو توځي وېړ دے والي په سبب د استعمال د کثرت آو د تلفظ د سهولت په اثر سره دغه توره ی په الف ونجوي د دغه د بېلولو د پاره بايد د لغت کتاب ته دے مراجعت وشي .

ت ، ټ ـ دغو توروته وتوځی سره نږدې دي هر کله چه پوست تلفظ
شي لمړۍ لیکل کیږي : تانده ، تخرگ ، توبګی . او هر کله چه غوټ تلفظ
شي دوهم لیکل کیږي : ټانټه ، ټغر ، ټوټی .

ط ـ دغه توره یې هم عربانو لره مخصوص ده ی . د پښتو په هغه کلماتو کښې
چه د عربي څخه آخیست شوي دی او دغه توري ولري که د دغه پرځای (ت) لیک
(ت) ولیکل شي عیب نه لري او جائز ده ی .

ث ، خ ، س ، ص ـ لمړی او څلورم عربانو لره مخصوص دی په پښتو کښې
نشته په هغه عربي کلماتو کښې چه په پښتو کښې استعمالیږي که د دغو تورو پرځای
(س) ولیکل شي عیب نه لري او جائز ده ی اما د (څ) توره ی د هغه قائمقام
نشي کیدلای . دوهم او دریم دواړه د پښتو توري دي اما د دغه دپاره
چه وپیژاندل شي چه په کوم ځای کښې (س) او په کوم ځای کښې (څ)
استعمالیږي د لغت کتاب باید وکتل شي .

ح ، خ ـ عربانو لره مخصوص ده ی په پښتو کښې نشته په هغه عربي

کلما تو کښې چه په پښتو کښې داخل شوي آو استعمالیږي یا استعمال شي که دوغه توري پر ځای (خ) یا هغه نور و لیکل شي عیب نلري ؤ ژبې د شپو سره سم ده ی .

۱۳، ر، ل — هر چیرته چه غوث تلفظ کړشي باید لمړه ی توره ی و لیکل شي دوغو دتفریق د پاره د سیم د لغت کتاب و کتل شي .

ژ ، بۀ سعه دوه یم توره ی چه د غوښې (ژ) غګ لري د پښتو په د یري قبائلو کښې نښتیوا ځې د کندهار په دده آو د وزیرستان په لته کښې تلفظ کیږي نور کوم ځای کښې که وي هم لیږ ده ی نو د غو د تفریق د پاره د سیم دلغت کتاب و کتل شي .

په عمومي دول سره پښتانه د و غه توري پر ځای د (ک) توره ی استعمالوي د بنو کسانو د لوست آو تلفظ د آسانتیا د پاره چه د غوښې (ژ) په دول ئې تلفظ کوي د یک دول ئې د غه سې منل شوه ی د مز ، اخمز ، بزلی .

د ، ډ ، ض — هر چیرته چه پوست تلفظ شي لمړه ی آو هر چیرته چه غوث تلفظ

شي دوه یم لیکل کیږي .

دریم توره ی عربا نو لره مخصوص ده ی په پښتو کښې بعضې عربي کلمات چه دغه توره ی په کښې وي کله د ( د ) په ډول او کله د ( ز ) په ډول تلفظ کیږي .

په پښتو کښې دغه پر ځای د ( د ) یا د ( ز ) لیکل جائز ده ی مگر دغومره پاملرنه غواړي چه هر چیرته چه دلته ی په د ول تلفظ کیږي باید دلته ی او که دوروستي په د ول تلفظ کیږي باید وروسته ی ولیکل شي .

بعضې چه په د ول د ( ز ) تلفظ کیږي تقریباً لاندیني الفاظ دي :

حضرت ، تضمین ، مضمون ، ضمیر ، قضا ، ضم ، فضا ، مضارع ، مضبط ، مضراب ماضي ، مضمضه ، غضب ، بیاض ، موضوع ، بغض ، مرتضیٰ ، قضیه ، ضرابخانه ، رضا ، بیضا ، مریض ، بیضه ، مرض ، امراض ، بعض ، ضیافت ، اضافت ، ضیاء ، روضه ، محضر ، حاضر ، احضار ، فیض ، عارض ، عرض ، غرض ، قبض ، قبضه ، نقض ، تناقض ، ضائع ، ضیاع ، تضرع ، وضع ، فضله ، اضطراب ، حامض ، اضمحلال ،

ضامن، ضمن، ضد، ضرر، ضرب، فضل، افضل، قرض، فرض، وضو، فضیلت .

ځ ذ ز ض، ظ — په پښتو کښې دوه یم آو وروستی دوه توری نشته په عوض د دغو درو تورو د (ز) یا (ځ) ليکل جائز دی . دلمری آو دریم توری د پښتو د پاره دي ولغت کتاب وکتل شی .

ن، ښ — وتوځی نی سره نږدې دی هر کله چه پوست تلفظ شی باید لمړی آو هر کله چه غوڅ تلفظ شی باید دوه یم ولیکل شی .

# خوه خُندی

توری دخولے و وځی .

د دغه د پاره چه سم ولوستل شی خوه خُندی ورته لازم دی .

د خوه خُندو د تعین آو سم لوستلو د پاره ځینے اشارتونه مقرر شوی چه هغو ته خوه خُندی ویل کیږی چه په عربی (حرکات) ورته وائی .

حرکات په عربی آو پارسو کښے درے آو په پښتو کښے څلور دی . دا ے

هماغه حرکات دي چه په پاسنيو دوارو وڑبو کښے استعماليږي آو عوام (زوره زبر، پېښ) ورته وائي چه له (زبر، زبر، پېښ) څخه ماخوذ دي آو مېز (لوړکړي کوزکړي، کږکړي) ورته وايو. څلورمه حرکه پښتو ژبے له مخصوصه ده چه مېږ (خوځکړي) ورته وايو. لکه د (گس، پېړ) په کلما تو کښے (گ، پ) د (ستن، خوه خند، گړبند) په کلما تو کښے (ت، خ، ب) هريو خوه ځکړي له کي

هرهغه توره ي چه حرکه و نه لري هغه ته ساکن يا وچ وهيل کېږي.

په عربي آو پارسو کښے پېښ په وچ (ابتدا په ساکن) نشته يعني لمړه ي توره ي هيڅ کله په هيڅ کليمے کښے ساکن نه وي اما پر خلاف د دغه په پښتو کښے ابتدا په ساکن شته لکه د (ستن، درونه، زسره) په کلمو کښے لمړني توري ساکن دي په پښتو کښے اجتماع د ساکنينو هم شته لکه د (بلندره) په کلمه کښے چه په معني د دعوت آو مېلمستيا ده نون آو دال دواړه وچ دي بلکه درے ساکنه هم په پښتو کښے يو ځاي کېداي شي لکه د (وېرش، څلوېښت) په کلمو کښے دروستي درے توري ساکن دي.

حرکات دوه رازه دي : رسميه حرکات ، حرفيه حرکات .

رسميه حرکه — د رسميو حرکاتو نښې چه د عربي نه آخيستی شوي دي درې دي چه نښې ئې بهٔ غسې دي ( اَ ، اِ ، اُ ) چه لمړه ي آو درېيم اشارتونه پر توري باندې آو دوه يم تر توري لاندې ايښودل کيږي . خو په پښتو کښې په عمومي صورت سره حرکات پر توروننه ايښودل کيږي آو توري لکه چه د حرکې نښه ولري لوستل کيږي . ځلور مې حرکې د پاره چه ( خو ځکه ي ده ي ) ترهوسه پورې کومه نښه نه ده مقرره شوې . خو که د غه سې (ـــ ) وليکل شي ښه به وي .

## ضوابط

په عربي کښې د کلماتو د ليکلو د پاره بې له حرکو آو سکونو نه ضوابط آو علامې نورې هم شته چه د ( شده ، مده ، وصل ، قطع ، آو حرفيه حرکه ) ځينې عبارت دي ځينې د دغو په پښتو کښې هم شته نو ځکه په دغه خصوص کښې په لاندينيو ليکو کښې بيان کيږي :

شدّه ـ هغه نښه ده وایه شي چه د توري د دوه وارے لوستلو دپاره پر توروباندے ایښودله کېږي دغه هم دعربي څخه آخیستنه شوے نښه ده او علامے دغه ـــــ ده (ـّ) چه پر تورو دپاسه ایښودله کېږي خو په پښتو کښے پر تورو تل نه ایښودله کېږي .

مد ـــ الف توري له مخصوص ده ی او دغه ـــــ (ـٓ) نښه پر ـــــــ ایښودله کېږي .

وصـــل } په پښتو کښے علامے نه لري .
قطع

حرفیه حرکه ـــ په پښتو کښے کله کله د لوست د آسانتیا دپاره یا بے له هغه د حرکے پر ځای توره ی استعمالېږي چه دغه توري هم ( ا ، و ، ه ، ی ) دی لره ی او درے یم د لوړکی پر ځای استعمالېږي لکه په ( راغلای ) کښے الف ولام او په ( نسوای کولای ) کښے الف د واو او د ولام حرکه جوړه وي په ( سره ی ) او ( منه ی ) او ( خوږه ) کښے د ( ه ) توره ی د ( ر ، ن ، و )

د توره لوړکي جوته وي . په پښتو کښې يو د وکلمات دي چه په وروستـه کښې
ئې د ( ي ) توره ي وي تر دغه پخوا به ئې دو غه سې کلماتو مفرد آو جمع
دواړه يو شان ليکل آ و تفريق به ئې په حرکاتو سره کاوه لکه : ( سړي ، تلي )
چه په پخواني رسم الخط سره د مفرد آو جمع د ليکلو د ول سره يو راز وه ي تفريق ئې
د وروستي نه مخکې توري په حرکه باندې کوي يعني کړ ئې څوک د وروستي نه
مخکې توره ي په لوړکي سره ولولي مراد ئې تينې مفرد آو که ئې په کوزکي باندې ولولي
مدعا ئې تينې جمع وي څو چه د دغه ليک ليده ونکه ي آ و د دغې کلمې لوستونکه ي
په اصل موضوع پوه نه وي ليا جمله ئې توله ونه لولي تفريق سره ئې نشي کولای . نوکه
د دغه سې کلماتو د وروستي نه مخکې توري ته په مفرد کښې د لوړکي پرځای حرفيه
حرکه يعني ( ه ) ورکو تفريق به ئې آسانه شي لکه : ( سړه ي ، تله ي ) جمع به ئې
البته په هاغه پخواني د ول سره ليکل کيږي : ( سړي ، تلي ) .
د پرهمدغه دوه توري د حرکې پرځای استعماليږي پاتې دوه نور استعماليږي .
و — د کږکي پرځای استعماليږي لکه چه د ( چوغکه ) په کلمې کښې ( و ) د

(چ) کږکړی جوړ وی .

ی — دکوزکی پرځای استعمالېږی لکه د (ټیکیالی ، ایندارہ) په کلمه کښې (ی) د (ث ۱۰) کوز کړی جوړ وی .

دغو ځلورو توروته د (املاتوری) هم ویل کېده ی شی .

د حرفیه حرکے استعمال په د پړی ځایونو کښې د سم لوستلو د پاره د پره آسانتیا پېښوی مثلاً د (دغسے) په کلمه کښې که چېرے حرفیه حرکه استعمال نشی احتمال لری آو کېده ی شی چه غلط ولوسته شی مثلاً د (غ) توره ی وچ ولوست شی لکه (دغ سے) اما که (دغه سے) ویکل شی بل د دل نه لوستل کېږی نو بنائی چه په لیکلو کښې په د پړی ځایونو کښې حرفیه حرکه (چه د لوست د پاره د پر خدمت کوی) ېېره نه کوآو په دغه چه محکے لیکلے شوے نزده تعصب ونه ښیو .

## ځ

په د پړی کلماتو کښې د لوستلوآو ویلو په وخت کښې دیو توری حرکه د نوړ و په نسبت شدیده وی چه مېږو رته (ځ) وایو .

وړبې اهل چه هغه لغت استعمالوي ورته معلوم وي آو دلوستلو آو ويلو په وخت
کې ئې سم لوی آو سم ئې وائي .

څوک چه وړبې اهل نه وي ليا وړبې اهل وي خو په خپل محيط کښې ئې هغه لغت
نه وي آوريدلی آو ليک ئې ولولي د دغه د لامه چه خ ورته څرګند نه وي ، کيداى
شي چه د خ خاى و ونجوي آو تلفظ ئې د وړبې د شيوې سره هېنده شي .

نو که يو پښتون د غه سې کوم لغت چه د ده د وړو ندانه په محيط کښې مستعمل نه وي
آو په بل کام آو کلي کښې مستعمل وي زده کوي بايد خ باندې ئې پام وکړي آو
که ئې ليکه د خ خاى دے په نښه کي چه بيا د روسته تېر نه ووځي آو د خ خاى و نه
ونجوي آو وروسته ئې غلط و نه لولي .

هد غه سې که څوک پښتون نه وي آو پښتو زده کوي ورته ضروره ده چه په دغه
نکي باندې پام وکړي آو معلمانو له هم ښائي چه د تعليم په وخت په دغه خصوص کښې
پام ولري آو د متعلم پام ورته متوجه کي .

مږ و (خ) د پاره د ضرب نښه (×) ټاکو .

علی الخصوص د لغت په کتابو نو کښے د (ځ) لیکل د هر ضرور ده ځکه لغتونه غالباً غلط ولوستل شی .

مثلاً د (پښتنواله) په کلمے کښے ځ پر ځلورو تورو راتلی شی ، (پرلمړی توری ، پر دریم توری ، پر څلرم توری ، پر اوم توری) مگر سم او صحیح دغه دی چه (ځ) پر (پنځم) توری راشی ځکه تلفظ غلطیږی او وژبے د لهجے سره هیڅ واقع کیږی د (ځ) په لیکلو کښے باید دغه سے ولیکل شی (پښتنوالہ) هم دغه سے د (اته) په تلفظ کښے که ځ پر (لمړی) توری وی وطول د هغه معین مقیاس په معنی ده چه دلاس د نوک نه ترڅنګلے پورے وی او که پر دوهم توری وی د معین عدد (ثمان ، هشت) په معنی ده .

نو د غلطے د مقصد د تعین په نسبت ځ لازمیږی .

# د لوړو وتو ځی

د هغو تورو وتو ځی چه د پښتو او نورو ژبو په منځ کښے مشترک وی هماغه سے دی لکه چه په پارسو او نورو ژبو کښے دی د هغو د تفصیلاتو څخه په دغه ځای کښے تیریږو د خو هغه

توري چه پښتو لره مخصوص دي د بڼوي وتوځي په لاندېني ډول سره دي :

د (ټ) وتوځی — د ژبې د څوکې لاندېنۍ برخه د غابښو د وو ريو تر شا نښلوله کېږي او د غږ (بږغ) د وهستلو په وخت بهرته کېږي او د (ت) غږ وهستل کېږي .

د (څ) وتوځی — ژبه د (ت) په وتوځي ايښو دله کېږي خو د غږ د وهستلو په وخت د (س) غږ وهستل کېږي .

د (ځ) وتوځی — ژبه د (دال) د وتوځي پر ځای ايښو دله کېږي خو د غږ د وهستلو په وخت د (ز) غږ وهستل کېږي .

د (ډ) وتوځی — که د (ټ) د وتوځي څخه هغه سے چه هماغه توري کښې بيان شو د دال غږ د وهستل شي د غه توره ی ادا کېږي .

د (س) وتوځی — ژبه مخ بهرته کت کېږي او په تالو نه نښلوله کېږي بلکه ښيله او بهرته وي خو د غږ د وهستلو په وخت د ژبې د څوکې لاندېنۍ برخه په ګرهندي والي سره د (ډ) په وتوځي لګوله کېږي او ژر بهرته کېږي او د

(ر) غګ وېستل کېږي .

د (ږ) د توضيحي — دا ژبې ځوکه د پاسني ورويو د وروستي برخې ته د پره نږدې شي دوا ره خوا ته ښه ښي د ورپو رې ونښلي خو د ژبې ځوکه نښلي د همدغې هوا ترسه نه ووځي . مګر دغه د کندهار خلکو له مخصوص ده ی نور د پښتو کښې دغه توره ی نشته او په بعضې کښې دغه توره ی د ګا په ځير تلفظ کېږي .

د (ښ) د توضيحي — د (ښ) د توضيحي د تالو مخکيني برخه ده د ادا په وخت کښې ژبه پورته کېږي او دغه سې وضعيت نسي چه هوا د ستوني نه ووځي د تالو مخکيني برخه کلکه ونښلي بيا ده ووځي . که د کندهار يانو د لهجې په دول دغه توره ی اداشي نو د پښتو (ژ) يعنې (ږ) د مخرج نه د شين غګ وېستل کېږي کنه د دغه توره ی د خپل استعمال د محيط په نسبت د وه دوله د توضيحي لري او غګ يې هم دوه دوله ده ی .

د (ش) د توضيحي د دغه توري او د (س) د توري د توضيحي يو ده ی په هما غه

د ول سره چه د (ړ) غږ وښتل کېږي د همدغه دوه توزي څخه که د (نون) غږ وښتل شي دغه توره ی ادا کېږي .

# د پښتو دلیک دول

پښتو په هغو تورو چه په عربي آو په پارسو کښې استعمالېږي لیکل کېږي آو د پښتو مخصوص اته توري تر دغه پخوا په لاندېني شکل سره لیکل کېدل (ټ ، څ ، ځ ، ډ ، ړ ، ږ ، ښ ، ڼ .)

دغه څلور راز و یې ګانې (مطلقه یې ، مجهوله یې ، معروفه یې ، تأنیثي یې) تر دغه پخوا په لیکلو کښې چا نه سره بېلولې . که څه هم یو سړی په دغه دول لیک کښې چه د نوو لو پښتنو خوا منل شوی آو نن ورځ هم مستعمل آو مروج دی حق نه لري چه ګوتې وهي اما که چېرې دغه سې یو اصلاحات چه ولیک د دول اساس ته ضرر و نه رسوي آو ولیک آو لوست د پاره آسانتیا راولي آو پښتانه یې ومني نا بوده به هم نه وي . مثلاً : (ښ)

تہ چہ لاندے غړ وندہ ی آوپاس دوہ ټکي ورکو ویو خو دا وہ چہ دیوتوری دپارہ دوے ټنبے بہ دوچہ دغہ زاندہ دہ آ وکلہ کلہ لاندینۍ غړ وندہ ی نے دځینو اشتباہاتو موجب ہم گرځي مثلاً کہ چیرے د (ٹ) تورہ ی دکلمے پہ منځ کښے راشي کلہ کلہ غړ وندہ ی نے میم پہ شہر شي آو دا شتباہ موجب وگرځي کہ دغہ غړ وندہ ی د دوو ټکو پرځای ولیکو ہم بہ د ډولکو د لیکلو دزیارہ څخہ خلاص شو آو ہم بہ موا شتباہ لہ موقع ورکړے نہ وی.

د (ځ) توری تہ ځینے دوہ ټکي ورکوی یو دځے پہ شہر پاس پر سر آو بل دجیم پہ څہر پہ منځ کښے آو ځینے (ح) باندے ہمزہ بہ وی دغہ سے (ځ) نو کہ چیرے وروستہ ی شکل پہ عمومی د دول سرہ ومنل شي آو دہغہ نہ لاس خلاستل شي د بہ بہ وی.

پښتو لرہ مخصوص دغوث دال شکل چہ څو اتہ دغہ دغہ سے وہ چہ پوست دال نہ لاندے یو غړ وندہ ی ورکول کیدہ کہ دغہ سے شي چہ عربي رسم الخط کښے کوبہ لکي دال غوث دال لرہ ، آو سم لکي دال پوست دال لرہ مخصوص

شي نو دغږ وندي تکليف به هم لرے شي آو اشتباه به هم چه (د بري وخت دغږ وندي له لا مله پېښيږي ) له منځه وه ووځي .

پښتو لره مخصوص دغونے (ړ ) شکل پخوا ترد غه دغه سے وه چه پستے (ر) لاندے يو غږ ونده ي ورکول کيده که دغه سے شي چه عربي رسم الخط کښے مستعمل کوږ لکي (ر) پښتو غونے (ړ) آو سم لکي (ړ) دغه بيے لره مخصوصه شي نو دغږ وندي تکليف هم لرے شي آو اشتباه به هم (چه د بري وخت دغږ وندي له لا مله پېښيږي ) له منځه وه ووځي .

پخوا ترد غه د پښتو ديک په د ول کښے د گاپ توره ي به لکه دعربي کاپ ليکل کيده اما د کاپ تر مد لاندے يو غږ ونده ي ور کول کيده و غه سے (ګ) حال دغه ده ي چه په پښتو کښے مستعمل گاپ د پارسو د گاپه شخه په تلفظ کښے هيڅ فرق نه لري نو دغه ده چه گاپ لکه نورو ژبو غونډے په دوه مده وليکل شي لکه د توري ترعنوان لاندے وه وپيل شول چه په پښتو کښے ييے گانے ځلور دي هم غه سے اشکال لئے هم بايد پيل شي ترڅو چه لوست آسانه شي نو دو غه

مقصد دپاره مقرر شوه ی چه مطلق آ ومعروفه یے که چېرے په وروسته کښے لیایو اځے راشی گر دی (یے) ویکل شی یعنے د ښی خوا دے په لیکلو پیښه وشی آو پر کینېره خوا دے ختم کړه شی و غه سے (ی) .

مجهوله یے که چېرے دکلمے په وروسته کښے لیا یو اځے راشی سمه ولیکله شی یعنے د کینېرے خوا دے په لیکلو پیښه وشی آو پر ښی خوا دے ختم کړه شی و غه سے (ے) .

که چېرے معروفه یے دکلمے په منځ کښے راشی ټکی دے ځنګ په ځنګ ولیکل شی و غه سے (..) لکه د (مینه) په کلمے کښے چه د محبت په معنی ده .

د مجهولے یے ټکی چه دکلمے په منځ کښے راشی باید لاندے باندے ولیکل شی و غه سے (:) لکه د (مېنه) په کلمے کښے چه دکور په معنی ده .

تانیثی یے لره چه دکلمو په وروسته کښے راځی آو په مخصوص د ول سره تلفظ کېږی (چه تقریبا مشدده وی آو تلفظ ئے په تسلیم اسره لری) باید لکی ورکړه شی دو غه دپاره چه ښو پېژاندل شی آو نورو یے گانو په څېرو نه لوستل شی

دغږے (ی) .

په پښتو کښے ځینے کلمے دی چه په ځینو ځایو کښے د وروستی توری وچ والےی (سکون) ئے په خوځګی باندے و نجېږی مثلاً په دغه جملے کښے چه (داور څخه ځان ساته) د (اور) د کلمے وروستنۍ توری چه وچ دهی په دغه ځای کښے په خوځګی سره لوستل کېږی نو که په دغه ځای کښے د لوست د اسانتیا او د خوځکی د اظهار دپاره د (ه) توری چه د حرفو حرکو ځینے دهی استعمال شی نو به وی او سم لوست شی : داوره څخه ځان ساته .

که څه هم ترڼن ورځے پورے په عمومی ډول سره پښتو په عربی رسم الخط لیکلے شوے او البته عربی رسم الخط ښه او ښکولی دهی امالږ څه په مخه ډول سره نه لیکل ګران دی او هم ډېر وخت غواړی او عربی لیکونکی هم په وطن کښے لږ دی نو ځکه پښتو دلاس په لیکلو سره څه عمومیت نه دهی میندلی نو که چیرے پښتو دلاس په لیکلو کښے په نستعلیقی لیک ولیکله شی لیک به ئے آسانه شی .

د پښتو د رسم الخط په خصوص کښې همدغه خپل ملاحظات مې څو کاله مخکې د هرو پښتنو ورونړو ته اظهار کړي او لکه کند هار يانو ورونړو د هرو هم تر يو درجې منلي خو بيا گوره دا دي چه درست پښتانه په کښې غور راو يوه پريکړه وکي .

## گړه (۱)

هر هغه لفظ چه معني ولري هغه ته (کلمه) وييل کيږي :

لفظ هغه شي له وييل کيږي چه د سړي له خولې څخه د وينا (نطق) په ډول وځي .

په معنی د الفاظو دلالت په دوه ډوله سره دی :

۱ ــ وضعي . لکه : ځمکه ، آسمان ، تيږه ، سړه ، آس ، او به ، بوټي او نور .

۲ ــ طبيعي . لکه : نوخې ، انگولې ، او نور نگو نه چه پر طبيعي حالاتو دلالت کوي .

کلمه په درې ډوله سره ده : نوم (۲) ، کړه (۳) ، توره ی (۴)

---

(۱) کلمه . (۲) اسم . (۳) فعل . (۴) حرف .

**اسم** — هغه ده ی چه په زمانے پورے اړه و نه لري آو بے له دغه چه څه ورسره ملګري شي خپله معني ورښئ : آ څک ، احمد ، کتاب ، هغه ، خپله ، توره ، سپين ، ځکه ، آو نور .

**فعل** — هغه ده ی چه معني ئے په زمانو اړه ولري : وه واهه ، وهي ، وبه وهي . آو نور .

**ادات** — هغه کلمه ده چه په خپله کومه معني و نه ښئ آو د اسم يا فعل په مرسته معني ورکي : په ، کے ، څ خپله معنا وے نه لري مثلاً که (کور) سره راشي معني ښئ : په کور ، کور کښے ، آو نور .



# لمړی څانګه

# اسم

اسم پر څلورو برخو بېلېږي :(مطلق اسم ،صفت ،کنايات ، مصدر)

## لمړی څپرکی

### مطلق اسم

مطلق اسم هغه کلمه وايه شي چه په زمانې څه اړه ونه لري او هغه شيان چه په عقل او خيال او حس سره پېژندل کېږي که د باندې موجود وي ليانه وي سړی له وسبځي او سړه وي پرې پوه کي لکه ( انسان ، آس ، جنت ، ملک ، عنقا ، ترنج ، پوست ) چه دوغونه ( انسان ، آس ) دوغه له لامه چه د باندې موجود دي په حس او عقل پېژندل کېږي او ( جنت ، ملک ) يو اځې په عقل او ( عنقا ) په خيال او ( ترنج ، پوست ) په حس سره پېژندل

کیږي . که د مطلق اسم مدلول د باندې موجود وي يعنې قابل د لمس او رويت وي هغه نه ( د عين اسم ليا د ذات اسم ) وبيل کيږي . لکه :
( خاوره ، څکه ، تيږه ، ونه ) او که ورچينړې موجود نه وي هغه نه ( د معنی اسم ) وبيل کيږي . لکه : ( خوږ ، پوهه ) .

دجنس اسم – د علم اسم :

مطلق اسم په دوه ډوله دي . يوه ته ( د جنس اسم ليا عام اسم ) بل ته ( د علم اسم ليا خاص اسم ) وبيل کيږي .

د جنس اسم – هغه دي چه اطلاق ئې په هر يوه د جنس کيدای شي لکه : ( سړی ، ونه ، آو نور ) . چه هر سړي ته بېلا بېل سړی او هرې ونې ته بيلا بيل ونه ويل کيدای شي .

په بلې عبارت سره هر هغه اسم چه ګڼره ( عدد ) منې هغه د جنس اسم ، ليا خو د عام اسم دی لکه پنځه سړي ، څلور آسمان ، لس څڅکي .

علم اسم – هغه دی چه اطلاق ئې خاص پر يوه شي وشي لکه : ( بلخ ، هلمند )

چه هریوه ښار ته بلخ آو هریوه نهر ته هلمند نه وییل کېږي .

خاص اسم ګنړه (عدد) نه مني مثلاً پنځه احمده آو لس کابل نه وییل کېږي

جغرافي اسما لکه (قطعو، مملکتو، ښارونو، کلو، والو، نهرونو، دندونو، غرونو، ټاپوګانو، لومړنه آو نور) آو دانانو نومونه، دستورو نومونه لکه : عطارد، زهره، آو نور درست دعلم اسمونه دي . که چېرې دجنس اسم پهسر کښې (دغه، هاغه، هغه، هوغه) راوسرل شي هغه هم لکه خاص اسم پرمعین فرد دلالت کوي لکه : هغه سړی وه وییل، دغه آس ځغلی شو . یعنې هغه معلوم سړي وه وییل آو دغه معلوم آس ځغلی شو .

## داسمائو خاصیت

پهاسمائو کښې دوه خاصیتونه دي چه یوه ته (څنګاړی)[1] آو بل ته (څوواړی)[2] وییل کېږي .

---

(۱) کیفیت ، (۲) کمیت .

خنګالی — په پښتو کښې د نارينه د پاره بېل او د ښځې د پاره بېل نومونه استعمالېږي . هغه نامه چه د نارينه د پاره استعمالېږي (مذکر اسم) او هغه چه د ښځې د پاره استعمالېږي (مؤنث اسم) وبلې کېږي . د مؤنث اسم نښې په پښتو کښې څلور دي :

۱ — د (ه) توری دی چه د اسم په وروستۀ کښې راځي لکه : ځکه ، ونه ، واوره .

تنبيه — ځينې اسمونه شته چه وروستۀ ئې توری ( ه ) وي او وروستي نه مخکې توری ئې خوځکې وي او خو مؤنث نه وي لکه : تره ، زره ، ليوه ، اوره ، وښته ، ميړه او نور .

پر ته د دغه ځينې نور مذکر اسمونه هم شته چه وروستۀ ئې توری ( ه ) وي او د وروستي نه مخکې توری ئې خوځکې هم نه لري لکه : مېلمه ، کوربه ، خسبه ، غوبه ، او نور ، مګر دغه سې اسمونه ډېر لږ دي .

۲ — مجهوله ( ې ) ده چه د کلماتو په وروستۀ کښې راځي لکه : تلوښې ، شړلې نوسې او نور .

۳ ــ تأنیثي یې د ه چه پښتو ژبې لره مخصوصه ده آو په مخصوص دول آو لهجې سره تلفظ کیږي لکه : ډوډۍ ، اوبړۍ ، سپوږمۍ ، نړۍ ، کونۍ .

۴ ــ (الف) ده ی چه د نومونو په وروسته کښې وي لکه : ژړا ، خندا ، ملا ، ښا ، تا .

القاب لکه : کاکا ، دادا ، ماما ، لالا ، آو نور مستثنا دي .

تنبیه ــ دځینو اسمانو په وروسته کښې ځینې نور توري لکه : و ، ځ ، ن هم آو نور لکه (پښتو ، ورځ ، بېاستن ، خپلوي) هم دي چه هغه اسماء د جماعو توره په اعتبار مؤنث گڼل کیږي . مگر حکمونه ئې په د هر و اسمانو شامل نه وي د دغه له لامه تقریبا د سماعي حکم لري نو ځکه دغلته ذکر نشول .

مؤنث دوه رازه دي یو (حقیقي) آو بل (غیر حقیقي) .

حقیقي مؤنث ــ هغه ده ی چه دخپل جنسه ځینې مذکر ولري لکه : ښځه ، اوښه ، فاطمه ، مریمه ، ورخو .

غیرحقیقي مؤنث ــ هغه مؤنث ده چه له څپله جنسه ځینې مذکرونه لري لکه :

ورځ ، وریځ ، اَزرا ، ملا .

غیرحقیقي مؤنث ــ هم دوه رازه ده ی : یو لفظي مؤنث ، بل معنوي مؤنث .

لفظي مؤنث ــ هغه ده ی چه په وروستنه کښې د تأنیث نښه ولري لکه :

دودي ، ګړی ، واوره ، اَزرا .

معنوي مؤنث ــ هغه ده ی چه د تأنیث نښه و نه لري آو مؤنث وګنړل

شي لکه : ورځ ، وریځ ، ستن ، زانګو ، پښتو ، برمنځ ، بېچن .

کوچېرے دغه دوه توري ( ا ، ه ) د کلمے په وروستنه کښې وي دو غه

دپاره چه و پېژندل شي چه د تأنیث نښے دي که نه ، باید جمع ته ئے وکتل

شي که جمع ئے پړاو آو مجهولے یے لیا خو د یواځے په مجهولے یے کېدله د

(تأنیث نښے دي ) که د غه سے نه کېدله نه دي .

د مؤنث د ساز ولو دود :

په پښتو کښې یو مذکر اسم په لاندېنيو د ولو نوسره مؤنث کېږي :

۱— هر صیغه مذکر ساهو اسم چه وروستهٔ ی توره ی ( ه ) وی آو وروستیٔ مخکښې توره ی ئے لوسرکه ی ولری تأنیث ئے په ( ن ، ه ) سره کیږی؛

| مذکر | مؤنث |
| --- | --- |
| مېلمه | مېلمنه |
| کوربه | کوربنه |
| غوبه | غوبنه |
| خربه | خربنه |
| اوښبه | اوښبنه |
| آسبه | آسبنه |

تنبیه — د مذکر اسم وروستهٔ ی توره ی چه ( ه ) وه د و پیلو آو لیکلو آسانتیا د پاره لرے شوے .

۲— هر صیغه مذکر اسم چه په وروستهٔ کښې ئے ( ی ) وی آو د وروستیٔ مخکښې توره ی ئے لوسرکه ی لیا د لوسرکی پر ځای ( ه ، لیا الف ) ولری آو نج

هم پر هغه وروستی نه مخکې توری باندې وی، وروستهٔ توری ئې پټانیئی یې وبخښی آو د وروستی نه مخکې توری لوسرکه ی په خوځکې باندې وبخښی آو که د (ه) یا (الف) توری وی لرې کیږی:

| مؤنث | مذکر |
| --- | --- |
| ګکې | ګکه ی |
| لیونۍ | لیونه ی |
| لالی | لاله ی |
| وسرکی | وسرکه ی |

۳ — که چیرې دیوه اسم وروستهٔ توری (ی) آو دهغه نه مخکې توری لوسرکه ی یا د لوسرکی په ځای (ه یا الف) ولری مګر خو پر هغه وروستی نه مخکې توری باندې نه وی آو هغه سې که فاعل یا مفعول دیوه اسم مذکر وی آو وغوښت شی چه مؤنث شی نو تانیث ئې په مجهولې ئې سره کیږی:

| مذکر | مؤنث |
|---|---|
| نوه ی | نوے |
| ملگره ی | ملگرے |
| تلونکه ی | تلونکے |
| پاځېدونکه ی | پاځېدونکے |
| شړونکه ی | شړونکے |
| شړله ی | شړلے |
| وهله ی | وهلے |

۴ - هرهغه مذکر ساهوا اسم چه په وروستهٔ کښے ئے د نسبی یے یا نسبی واو وی تانیث ئے په تانیثی یے سره کېږی:

| مذکر | مؤنث |
|---|---|
| شرابی | شرابۍ |
| دولی | دولۍ |

| | |
|---|---|
| خښو | خښې |
| داسړو | داسړې |

مگر د هری وخت ځینې پښتانه تأنیث د بعضو اسماؤ چه په وروستۍ کښې نسبي واو وي په دغه شان نه کوي بلکه په تأنیث کښې ئې د (ور) والا منسوب اسم مؤنث استعمالوي : مثلاً د وگېډ د مؤنث ته (گېډوره) او د خښو مؤنث ته (خښوره) وائي .

۵ — هر هغه اسم چه تأنیث ئې په پاسنیو قلورو قاعدو سره ممکن نشي په وروستۍ کښې ئې د (ه) توره ی زیاتېږي او که د اسم د وروستي نه مخکې توره ی (و) وي نو حذفېږي .

| مذکر | مؤنث |
|---|---|
| کودگر | کودگره |
| مل | مله |
| اوبن | اوبنه |

| | |
|---|---|
| پښتون | پښتنه |
| سپور | سپره |
| سور | سره |

**تنبیه** — دخوږ، تود، زرغون، په اسمانو کښې د پاسني اصول په هېنډے سره د واو توره ی نه حذفیږي. آو همدغسې په ځینو اسمانو کښې که د اسم د وروستي نه مخکښې توره ی (ی) وي کله کله حذفیږي لکه: شین چه (شنه) آو (تریو) چه (تروه) کیږي.

**تنبیه** — هغه مذکر اسمونه چه په وروسته کښې ئے الف وي نه مؤنث کیږي بلکه په مذکر آو مؤنث دواړو کښې یو شان استعمالیږي لکه: چاسا اسړه ی، چاسا ښځهٔ.

**څو والی** — د اسم مفرد آو جمع له وېیل کیږي.

که یو جنس اسم د یوه شي بیان وکي هغه ته (مفرد) آو که د ډېرو شیانو بیان وکي هغه ته (جمع) وېیل کیږي.

مفرد اسم په مختلفو اصولو سره جمع کېږي :

الف — د مذکر جمع :

د پښتو د نارینه د جمعې قواعد ځینې یو اړخ ساهو آو ځینې یو اړخ بې ساه

آو ځینې د واړو پورې اړه لري .

بعضې قواعد چه ساهو اسمانو پورې اړه لري دغه دي :

۱ — که چېرې وروستی توری د یوه مذکر اسم (الف) وي په

(ي، ا، ن) سره جمع کېږي :

| جمع | مفرد |
|---|---|
| چاریایان | چاریا |
| بېرایان | بېرا |
| میرزایان | میرزا |
| مولایان | مولا |

۲ — هر هغه مذکر ساهو اسمونه چه وروستی توری يې (ه) وي آو

دوروستی نه مګځی توره ی ئے لو ښکه ی ولری دجمع په وخت کښې ئے
وروستنه ی توره ی په (الف) وښځېږ ی آو (ن ، ه) پرے زیاتېږی:

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| مېلمانه | مېلمه |
| کوربانه | کوربه |
| غوبانه | غوبه |
| اوښبانه | اوښبه |

۳/۳ — هر هغه مذکرساهو اسمونه چه وروستی توری ئے (ون) وی لیا
د فاعل اسم مخفف دجمع په وخت کښې ئے (واو) په (الف) وښځېږی
آو (ه) توره ی پرے زیاتېږی :

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| پښتانه | پښتون |
| شپانه | شپون |

اوسبون اوسبانه

خربون خربانه

۴ — هغه مذکر ساه‌ور اسمونه چه وروستهٔ ی توری لے (ی) وی آو د هغه نه مخکے توری لے کوز کهٔ ی ولاړ لیا خو د په بل عبارت سره هره هغه کلمه چه په وروسته کښے لے نسبتی (ی) وی په (ان) سره جمع کیږی:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ښښی | ښشیان |
| چرسی | چرسیان |
| شرابی | شرابیان |
| دولی | دولیان |

۵ — هغه مذکر القاب چه د مذکر اسم قائمقام وی آو وروستهٔ ی توری لے (الف) وی یا هغه مذکر القاب آو ځینے صفات چه وروستهٔ ی

توره ی ئے (ه) وی په گان سره جمع کیږی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| کاکا | کاکاگان |
| ماما | ماماگان |
| دادا | داداگان |
| صاحبزاده | صاحبزاده گان |
| ساده | ساده گان |

۶ — هغه منسوب ساهو مذکر اسمونه چه وروستهٔ ی توری ئے (واو) وی په (وان) سره جمع کیږی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| گیډو | گیډووان |
| خښو | خښووان |

۷ — هغه ساهو مذکر اسمونه چه په پاسینو شپږو اصولو سرهٔ ئے جمع ممکنه

نښې یعنې هغه نښې چه په پاسینو قواعدو کښې ذکر شوې په کښې نه وي
په (ان) سره جمع کېږي :

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| خانان | خان |
| چرگان | چرگ |
| لښمان | لښم |
| منگوران | منگور |
| اوښان | اوښ |
| آسان | آس |

تنبیه — د آس جمع چه ځینې د (آسونه) په دول کوي دقاعدې سره ښه نه ده .

تنبیه — د (پسه ، واره ، تره ، نیکه ، ورور ، پلار ، میره ، توربور) اسمونه که څه هم اسمونه دي مگر د دغې قاعدې نه وتلي دي .

۴/۸ — په پښتو کښې ځینې مذکر اسمونه شته چه د جمع په وخت کښې ئې د وروستی نه مخکښې توری لوسکه ی په خولګی باندې و نجېږی چه د دغه هم په آور بدو پورې اس هلری آو که ښه غور و شی کېدای شی چه کومه قاعده هم ورته میندهٔ شی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ملخ | ملخ |
| ناریینه | ناریینه |
| کودګر | کودګر |

هغه قاعدې چه په ساهو آو بې ساهو اسمونو دواړو پورې اړه لری :

۱/۹ — که چېرې د مذکر اسم آو روستهٔ ی توره ی (ی) وی آو د هغه نه مخکښې توره ی لوسکه ی ولری لیا د (ه) لیا د (الف) توره ی وی چه هغه هم د لوسکی اظهار خدمت کوی د غه سې اسمونه په معروفې یې سره جمع کېږی آو د مخکښې توری لوسکه ی په کوزکی باندې و نجېږی ، که د وروستی نه مخکښې توره ی

(الف) یا (ه) وی لرے کیږی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| سړهی | سړی |
| کسړهی | گسړی |
| کنوړهی | کنوړی |
| غویهی | غویي |
| پیاوسړهی | پیاوسړی |

۱/۲ — هغه مذکر صفت اسمونه چه وروستی نه مخکے توری ئے (واو) وی په جمع کے ئے (واو) په (الف) ونجیږی آو د اسم په وروستہ کے د (ه) توری را وړل کیږی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| سپور | سپاره |
| زوړ | زاړه |

| | |
|---|---|
| کوږ | کاږه |
| دوس | واسه |

تنبیه — ځینې نو نیه صفات چه جمع ولري د دغې قاعدې نه وتلي دي آو په لاندینی د ول سره جمع کیږي لکه : سور ، زرغون .

تنبیه — د خوږ آو تود په جمع کښې د تلفظ د سهولت د پاره د پاسنی اصول په پهندے سره د (واو) توره ی په (الف) نه وبجیږي بلکه واو په خپل ځای وي آو الف د واو د توري نه مخکښې لیا وروسته راوړل کیږي لکه : خواږه تاوده .

۳/۱۱ — په پښتو کښې ځینې مذکراسمونه شته چه د جمع په وخت کښې د وروستی توري وچ والی په خوځلی باندې وبجیږي آو د اسم په وروسته کښې د (ه) توره ی راوړل کیږي چه د ضمه آو ربه د پورته اسم لري آو که وروسته بنه غور وشي کیدای شي چه کومه قاعده هم ورته پیدا شي .

| مفرد | جمع |
|---|---|
| زرغون | زرغونه |

| | |
|---|---|
| سور | سر |
| شین [1] | شنه |
| غر | غره |
| غل | غله |
| مل | مله |

۴/۱۲ — هر کله چه د یوه مذکر اسم په وروسته کښې د (واو) توري وي د اسم په وروسته کښې (ګان) راوړل کیږي :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| نیکو | نیکوګان |
| بارخو | بارخوګان |
| ماښو | ماښوګان |

هغه قاعده چه یو اسمې بې ساهو اسمونو پورې اړه لري دغه ده :

(۱) دلته د (ی) توري ږیسته کیږي .

۱/۱۴ — کوم مذکر بے ساه اسمونو د جمع په پاسینیو قاعدو سره ممکن نشي یعنے هغه بیان شوی نښے په کښے نه وي آو د وروستی نه مخکښے توره ي لے خوځه کړي ولړي لیا (الف) لیا (ی) لیا (واو) وي (۱) لیا لوسرکه ي ولړي (۲) لیا وړچ وي نو دوغه سے اسمونو جمع په (ونه) سره کیږي:

دهغو اسمونو مثال چه وروستی نښے مخکښے توره ي لے خوځه کړي ولړي

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| زړه | زړونه |
| ورسک | ورسکونه |
| مښ | مښونه |
| مخ | مخونه |

---

(۱) هغه صفتونه چه وروستی نه مخکښے توره ي لے (واو) وي دوغے قاعدے نه وتلي دي لکه : زرغون ، سور آو نور .

(۲) هغه اسمونه چه وروستی نه مخکښے توره ي لے لوسرکه ي ولړي د بے ساه آو ساهو په منځ کښے مشترک وي چه هغوی لے په آو ربه دو پورے اړه لري لکه : سړ وي ، کښوره ي ، هم غه سے دغینو نباتاتو نومونو لکه : (توت ، انبوون ، اغز ، آو نور ) که څه هم بے ساه نومونه دي مګر دوغے قاعدے په موجب نه جمع کیږي بلکه هغه په ۲/۴ قاعدے سره جمع کیږي لکه : توتان ، اغزان ، انبوونان .

| جمع | مفرد | |
|---|---|---|
| گاسونه | گام | د هغو اسمونو مثالونه چه وروستي نه مخکې توری ئې الف وي |
| لاسونه | لاس | |
| ښارونه | ښار | |
| دېوالونه | دېوال | |
| ټيکونه | ټيک | د هغو اسمونو مثالونه چه وروستي نه مخکې توری ئې (ی) وي |
| پېچونه | پېچ | |
| ورېږونه | ورېږ | |
| خيرونه | خير | |
| کورونه | کور | د هغو اسمونو مثالونه چه وروستي نه مخکې توری ئې (و) وي |
| ورونه | ور | |
| غوبرونه | غوبر | |
| نوموونه | نوم | |

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ټوپک | ټوپکونه |
| کوټک | کوټکونه |
| تمتک | تمتکونه |
| غر | غرونه |
| پنډ | پنډونه |
| دنډ | دنډونه |
| چرت | چرتونه |
| سروند | سروندونه |

دهغو اسمونو مثال چه وروستی نه مخکې توره ی ئې (لوړکې ی) ولري — ټوپک، کوټک، تمتک

دهغو اسمونو مثال چه وروستی نه مخکې توره ی ئې (وچ) وي — غر، پنډ، دنډ، چرت، سروند

ب ــــ دمؤنث جمع :

دمؤنث دجمع قاعدے هم لکه دمذکر څښنے یو اځے ساهو آو څښنے یو اځے بے ساه آو څښنے دوار دپورے اسماه لري .

د مؤنث بغه قاعده چه پواځې ساهو انو پورې اړه لري :

$\frac{1}{14}$ — هغه مؤنث ساهو اسم چه وروستي توري ئې (ور) وي دوه وروستي دوه توره ترحذف وروسته (يندې) پرې زياتيږي.

| جمع | مفرد |
|---|---|
| ينډې | مور |
| نذرينډې | نذور |
| ترينډې | ترور |
| نږينډې | نږور |

تنبیه — دخور په جمع کښې که څه هم باید د (و) توره ئ لرې شي اما د تلفظ د سهولت د پاره ئې نه لرې کوي .

تنبیه — د (ور، يور) اسمونه د پاسني اصول په هيڅ ډول سره د (ر) تر لرې کولو وروسته پښتو نون (ڼ) او مجهولې يې جمع کيږي لکه : (لوڼې، يوڼې) .

د مؤنث د جمع ځنې قاعدې چه یو اځې به سا هو پورے اس ه لري :

$\frac{۱}{۱۵}$ – که یو اسم معنوي مؤنث وي یعنې د تأنیث علامه آو نښه ونه لري آو مؤنث وګنړل شي ځنې اسم په بجهو لے یے سره جمع کیږي :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ورځ | ورځے |
| وربځ | وربځے |
| بړستن | بړستنے |

$\frac{۲}{۱۶}$ – هر ځنې غیر حقیقي مؤنث اسم چه وروستۍ توری ئے معروف یے وي آو مؤنث وګنړل شي یا نسبي یے وي یا د نسبت د ځنې ادات وي چه وروستۍ توری ئے معروف یے وي د جمع په وخت کښے ئے وروستۍ توری په تأنیثي یے ونجېږي :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| بیاتي | بیاتۍ |

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| خپـلوې | خپلوي |
| ورورګلوې | دروروګلوي |
| غليمې | غليمي |

دمؤنث دجمع هغه قاعدے چه ساهو آو بےساه دواړو پورےاړه لري :

$\frac{1}{17}$ — هرهغه مؤنث اسم چه په وروستۍ کښے ئے د (ه) توره وي چه د تأنيث نښه ده وي آو مؤنث اعتبارشي هغه اسم په مجهولے يے سره جمع کيږي :

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| ښځے | ښځه |
| سترګے | سترګه |
| ونے | ونه |
| شګے | شګه |

تنبيه — ځنے اسمونه شته چه وروستۍ توره ئے (ه) وي اما

مؤنث نه گنړل کېږی لکه : ( تره ، زره ، ښوه ، اوسره ، وښته ، میره ، آونور ) هغه په وضد ول نه جمع کېږی .

۲/۱۸ — هر هغه مؤنث اسم چه وروستهٔ ی توره ی ئے الف آو مؤنث وی هغه د واوآو مجهولے یے ( وے ) په توروجمع کېږی :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| دوا | دواوے |
| ژړا | ژړاوے |
| غوا | غواوے |
| بلا | بلا وے |

۳/۱۹ — هر هغه مؤنث اسم چه وروستهٔ ی توره ی ئے ( و ) وی په ( گانے ) سره جمع کېږی :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| پښتو | پښتو گانے |

| | |
|---|---|
| بیزو | بیزوګانې |
| شارو | شاروګانې |
| ځانګو | ځانګوګانې |

تنبیه – د (او – ې) اسم که څه هم په وروستۍ کښې دواو توری نری
مګر په (ګانې) سره جمع کېږي.

۲۴ – هر یو مفرد مؤنث اسم چه وروستی توری یې مجهول یې وي
د جمع په وخت کښې یې وروستی توری په مجهول یې (ې) وبدلیږي:[1]

| مفرد | جمع |
|---|---|
| نوې | نوې |
| تلونکې | تلونکې |
| ښېګړې | ښېګړې |
| وېلې | وېلې |

تنبیه – هر یو اسم چه وروستی توری یې (تأنیثي) یې وي هغه

(۱) ځینې په معروفې (یې) وبدلوي.

نه جمع کېږي لکه : د ودي، اګري، کوچني، مرغې، کوکې، د دغو سې اسمونو په وروسته کښې وجمع د پاره د ( ګانې) وکلمې راوړل غلط دي بايد تښې د دې وشي .

ځينې اسمونه خلاف دقياس جمع کېږي خو دغه سې اسمونه د پر نه دي چه دهغوي د پاره دقاعدې بيان وشي لکه د ( خوى، اسکور، ورور) جمع چه (خامن، سکاره، وروڼه) کېږي .

تنبيه — د اجنبي اسمونو جمع (چه په پښتو کښې تو تلي دي ) د پښتو په دود کېږي لکه : پروګرامونه، ماشينونه .

د جمع اسماء — په پښتو کښې ځينې اسمونه دي چه د جمع علامه آو نه لري اما جمع ګڼل کېږي لکه : اوبه، اوړه، غنم، بزدن، آونور .

## دلوموګو آووښته :

د پښتو ځينې اسمونه په ځينو ځايو کښې په وېيلو کښې آوښي :

۱— هغه مفرد اسمونه چه د جمع په (۲، ۳، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۵، ۱۶، ۱۷) قاعدو

کښې ذکر شوي د جمع په دول استعمالیږي خو مراد تینې مفرد وي .

۲ — د جمع اسم په وروستهٔ کښې د (و) توره ي را ورسل کیږي ، که د اسم وروستهٔ ي توره ي (ه) لیا (ي) وي (پرته د تأنیث یې) د (و) توره ي داسم د دغه وروستي توري پر ځای راځي آو که نه د (و) توره ي د اسم په وروستهٔ کښې زیاتیږي آو د هغه جمع اسمونو څخه بغیر د جمع په (۲، ۳، ۱۰) قاعدې کښې بیان شوي الف رسې کیږي .

تبصره — کله کله د جمع اسم په وروستهٔ کښې معروفه (ي) وي هم ځینې نه خوانه حذفیږي بلکه هغه معروفه (ي) د تأنیث (ي) په دول تلفظ کوي آو په وروستهٔ کښې ئې (و) زیاتوي لکه : پهگرېو کښې او بوښته . نظر د غې قاعدې ته باید ووهیل شي چه پهگرو کښې او بوښته اما ځینې خلک ئې هغه هم وائي .

تنبیه — کله کله د هغه د ول اسمونو څخه چه په (ونه) سره جمع کیږي وروستي دوه توري (نه) حذفیږي آو پاتې ئې په هغه موقع کښې په هغه معنی سره

استعمالیږی لکه : ( کورونه ) نظر دغے قاعدے ته باید وه وهیل شی چه ( په کورونو کښے دی ) مگر ځینے خلک دغه سے هم وائی چه ( په کورو کښے دی ) .

دآو وښتو ځایونه :

الف — هر کله چه یو اسم مضاف الیه واقع شی :

| | دلمړی دول یعنے د مفرد جنس اسم مثال | د دوهم دول یعنے د جمع جنس اسم مثال |
|---|---|---|
| ١ : | • | د میرزایانو |
| ٢ : | د مېلمانه | د مېلمنو |
| ٣ : | د پښتانه | د پښتنو |
| ٤ : | • | د ښښیانو |
| ٥ : | • | د کاکاگانو |
| ٦ : | • | د ګیډووانو |
| ٧ : | • | د اوښانو |

| | | |
|---|---|---|
| ۸ : | د ملخ | د ملخو |
| ۹ : | د سړي | د سړو |
| ۱۰ : | د سپاره | د سپرو |
| ۱۱ : | د زرغونه | د زرغونو |
| ۱۲ : | • | د ناپوګانو |
| ۱۳ : | • | د زړونو |
| ۱۴ : | • | د ویندو |
| ۱۵ : | د برستنې | د برستنو |
| ۱۶ : | د څپلۍ | د څپلیو |
| ۱۷ : | د ښځې | د ښځو |
| ۱۸ : | • | د دواوو |
| ۱۹ : | • | د پیشوګانو |
| ۲۰ : | • | د نوو |

ب ـ که دیوه جنس اسم سره د مفعول ادات (د مفعول به غو پر ته چه په پښتو کښې معین ادات نه لري او تعریف ئې د اسمانو په احوال کښې ذکر شوه ی) راشي :

| | دلمړی د ول یعنې د مفرد جنس اسم مثال | دوه یم د ول یعنې د جمع جنس اسم مثال |
|---|---|---|
| ۱ : | | میرزایانو ته |
| ۲ : | مېلمانه ته | مېلمنو ته |
| ۳ : | پښتانه ته | پښتنو ته |
| ۴ : | . | ښځیانو ته |
| ۵ : | . | کاکا گانو ته |
| ٦ : | . | گیدړ وانو له |
| ۷ : | . | خانانو له |
| ۸ : | ملخ له | ملخو له |
| ۹ : | سړی له | سړو له |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ : | سپاره ځینې | سپېرو ځینې |
| ۱۱ : | زرغونه سره | زرغونو سره |
| ۱۲ : | . | ټاپوګانو ځینې |
| ۱۳ : | . | زړونو ځینې |
| ۱۴ : | . | مېندو لره |
| ۱۵ : | براستنې کښې | براستنو کښې |
| ۱۶ : | خپلوی کښې | خپلویو کښې |
| ۱۷ : | بنځې کښې | بنځو کښې |
| ۱۸ : | . | دواوو کښې |
| ۱۹ : | . | پښتوګانو ته |
| ۲۰ | . | نووته |

ج — که دیوه جنس اسم سره آروونکې توری آو کلمات ( څخه ، ځینې ، لاندې ، باندې ، پر ، پورې ، سره ، غوندې ، پخېر ، په شان ، شانته ، په راز ،

پہ دول، پہ دوو ، تر ) راشی:

| | ولمړی دول یعنے د مفرد جنس اسم مثال | دوهم دول یعنے د جمع جنس اسم مثال |
|---|---|---|
| ۱ : | ٠ | میرزایانو ښځه |
| ۲ : | مېلمانه ښځه | مېلمنو ښځه |
| ۳ : | پښتانه ښځه | پښتنو ښځه |
| ۴ : | ٠ | ښیشیانو لانده |
| ۵ : | ٠ | کاکاګانو باندے |
| ۶ : | ٠ | پرګېډ وولنو |
| ۷ : | ٠ | پراوبانو |
| ۸ : | ملخ سره | ملخو سره |
| ۹ : | سړی پورے | سړو پورے |
| ۱۰ : | سپاره غونډے | سپرو غونډے |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱ : | زرغونه کېنې | زرغونو کېنې |
| ۱۲ : | . | ناپوګانو کېنې |
| ۱۳ : | . | زړونو کېنې |
| ۱۴ : | . | مېندو سره |
| ۱۵ : | ورځې پڅېر | ورځو پڅېر |
| ۱۶ : | څپلوۍ نه | څپلويو نه |
| ۱۷ : | سترګې پورې | سترګو پورې |
| ۱۸ : | . | دواو سره |
| ۱۹ : | . | پښتوګانو غونډې |
| ۲۰ : | . | نوو غونډې |

د — هر کلمه چه يو جنس اسم د ماضي صيغې د متعدي فعل فاعل واقع شي :

| | دلمړی دول یعنے د مفرد جنس سم مثال | دوهیم دول یعنے د جمع جنس سم مثال |
|---|---|---|
| ١ : | . | میرزایانو ووهلم |
| ٢ : | مېلمانه وربر ولم | مېلمنو وربر ولم |
| ٣ : | پښتانه وربر ولم | پښتنو وربر ولم |
| ٤ : | . | ښشیانو ووهلم |
| ٥ : | . | کاکاګانو ووهلم |
| ٦ : | . | ګېډه وانو ووهلم |
| ٧ : | . | اوښانو ووهلم |
| ٨ : | ملخ وچیچلم | ملخو وچیچلم |
| ٩ : | سړی ووهلم | سړو ووهلم |
| ١٠ : | سپاره ووهلم | سپرو ووهلم |
| ١١ : | غلو وشکولم | غلو وشکولم |

| | | |
|---|---|---|
| ١٢ : | . | مانږ وګانو پورے وہستم |
| ١٣ : | . | زرں ونو وغوښتل |
| ١٤ : | . | میندو وژرل |
| ١٥ : | ستنئے سورہ ی کړ | ستنو سورہ ی کړ |
| ١٦ : | ترګبنی سترہ ی کړ | ترګبنو سترہ ی کړ |
| ١٧ : | بنځے وسکوندہ | بنځو وسکوندہ |
| ١٨ : | . | بلاوو وۀ وېړاوہ |
| ١٩ : | . | پیښو ګانو وشکاوہ |
| ٢٠ : | . | تلونکو وو ہلم |

۵ ـــ ہر کله چه یو جنس اسم د ماضی صیغے د مخصوص لازمی (ل) والا مصادرو فاعل واقع شی :

| | دلمړی دول یعنې د مفرد جنس اسم مثال | د دوه‌یم دول یعنې د جمع جنس اسم مثال |
|---|---|---|
| ۱ : | . | ملایانو وژړل |
| ۲ : | میلمانه وخندل | میلمنو وخندل |
| ۳ : | پښتانه وخندل | پښتنو وخندل |
| ۴ : | . | ښځیانو ودانګل |
| ۵ : | . | کاګانو وژړل |
| ۶ : | . | ګیډه وانو ودانګل |
| ۷ : | . | اوښانو ودانګل |
| ۸ : | ملخ ودانګل | ملخو ودانګل |
| ۹ : | سړی وخندل | سړو وخندل |
| ۱۰ : | سپاره ودانګل | سپرو ودانګل |
| ۱۱ : | غله ودانګل | غلو ودانګل |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲ : | . | مانړوګانو وژړل |
| ۱۳ : | . | . |
| ۱۴ : | . | مېنډو وژړل |
| ۱۵ : | . | . |
| ۱۶ : | . | . |
| ۱۷ : | ښځې وخندل | ښځو وخندل |
| ۱۸ : | . | غواوو وواګل |
| ۱۹ : | . | پېشوګانو پيخ وهل . |
| ۲۰ : | . | تلونکو ونوخل |

تنبيه — د جمع د (۱۳، آو ۱۵، آو ۱۶) قاعدے مثالونه د دغه له لا مله چه د غه د دوال اسماء د خپل بے ساه والی په نسبت د لازمی فعل فاعل واقع کېدای آو په دغه موقع کښے استعمالېدای نه شی نه دی لیکل شوی .

و — هر کله چه يو جنس اسم مستثنا واقع شی :

| | | ولمړی دول یعنے د مفرد جنس اسم مثال | دووهیم دول یعنے د جمع اسم مثال |
|---|---|---|---|
| ۱ | : | . | بے میرزایانو |
| ۲ | : | بے میلمانه | بے میلمنو |
| ۳ | : | بے پښتانه | بے پښتنو |
| ۴ | : | | بے ښشیانو |
| ۵ | : | . | بے کاکاگانو |
| ٦ | : | . | بے گیډووانو |
| ۷ | : | . | بے اوبنانو |
| ۸ | : | بے ملخ | بے ملخو |
| ۹ | : | بے سری | بے سرو |
| ۱۰ | : | بے سپاره | بے سپرو |
| ۱۱ | : | بے زرغونه | بے زرغونو |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲ : | ۰ | بےناپوگانو |
| ۱۳ : | ۰ | بےزړونو |
| ۱۴ : | ۰ | بے ینډو |
| ۱۵ : | پرته له بہستنے | پرته له بہستنو |
| ۱۶ : | پرته له څپلوی | پرته له څپلویو |
| ۱۷ : | پرته له بنځے | پرته له بنځو |
| ۱۸ : | ۰ | پرته له دواوو |
| ۱۹ : | ۰ | پرته له پښوګانو |
| ۲۰ : | ۰ | پرته له وہونکو |

**تنبیه** — د (بے) د نفی ادات هم دی نو هر کله چه د نفی په مقصد د غه توری دیوه مفرد یا جمع اسم سره راشی هغلته هم هغه اسم، سم له پاسنی او صول سره تغیر منیده کوی .

ز — هر کله چه یو جنس اسم مناداواقع شی په دوهم دول سره آوسی .

١ : بیے میرزایانو

٢ : بیے میلمنو

٣ : بیے پښتنو

۴ : بیے نشیانو

۵ : بیے کاکاگانو

٦ : بیے گبهدووانو

٧ : بیے خانانو

٨ : بیے کودگرو

٩ : بیے سرو

١٠ : بیے سپیرو

١١ : بیے غلو

١٢ : بیے ماهنزوگانو

١٣ : بیے زنونو

۱۴ : یے ییندو

۱۵ : . . .

۱۶ : . . .

۱۷ : یے بنځو

۱۸ : یے بلاوو

۱۹ : یے ښاروګانو

۲۰ : یے ښارلو

تنبیه — جمع د (۱۵، آو ۱۶) قاعدے مثالونه دو غه له لامله نه دی لیکل شوی چه دغه دول اسماء بے ساه دی مناداو نه شی واقع کیدای.

تنبیه — بنځه، پښتنه، آو نور که ییندهٔ شی دغه سے اسمونه د نداپه وخت کښے نه آوړی بلکه د ندا ادات چه مجهوله یے ده په وروسته کښے ئے راځی آو د تلفظ د سهولت د پاره دا اسم وروستهٔ ی توره ی چه (ه) ده غورځول کیږی مثلاً و یل کیږی چه (یے بنځے، یے پښتنے) دلته دغه ګومان چه دا آو بنسټو قانون

په موجب به دغه سے شوه ی وی سم نه ده ی .

تنبیه — ځینے اسمونه چه ذات پورے اړه ولری یعنے صفت نه وی آو وروستی نه مخکے توره ی ئے (واو) وی هر کله چه مضاف الیه یا مفعول (پرته و مفعول ته) واقع شی یا آس وونکو توروآو کلما تو سره راشی روستی نه مخکے توره ی ئے په الف وګرځی آو په وروستنه کښے ئے د (ه) توره ی زیاتیږی لکه : (زنګون) چه (زنګانه) آو (لرمون) چه (لرمانه) آو (ور) چه (وره) آو (ښور) چه (ښوره) ګرځی آو نور .

تنبیه — هغه د ولن جمع اسمونه چه مفرد و نه لری آو د ادا تو په زیاتو لو سره جمع شوی نه وی مګر جمع ګڼل کیږی (لکه : اوبه ، غنم ، بزدن ، آو نور) هغه هم په پاسنو حالاتو کښے په پاسنی اصول سره تغیر مینده کوی .

## د اسماؤ احوال

د اسمائو اته حاله دی :

۱- مجرد، ۲ - مفعول به، ۳ - مفعول الیه، ۴ - مفعول فیه، ۵ - مفعول منه، ۶ - مفعول له، ۷ - مفعول معه، ۸ - مضاف الیه .

۱- **مجرد** : هغه اسم ده ی چه څه پرے زیات شوی نه وی لکه: کور، کوټه، انګر، ټوپک .

۲- **مفعول به** : مفعول به په پښتو کښے ادات نه لری .

۳- **مفعول الیه** : هغه اسم ده ی چه د اسم په وروسته کښے د ( ته ) ادات زیات شوه ی وی لکه: چاته، ماته، آس ته، کورته، کوټے ته .

۴- **مفعول فیه** : هغه ده ی چه د اسم په سر کښے د ( په ) لیا ئے په وروسته کښے ( کښے ) لیا د واړه چه ( په ) ئے په سر آو ( کښے ) ئے په وروسته کښے راځی لکه : په کور، کور کښے، په کور کښے . تفصیلات د ے په نحو کښے وکتل شی .

۵ - **مفعول منه** - هغه ده ی چه د اسم په سر کښے ( د ) لیا ( له ) آو په وروسته کښے ئے ( نه ) لیا ( څخه ) لیا په سر کښے دلمری د دوه نه یو آو په وروسته کښے دورستی دوه د وه نه یو راځی لکه : د کوره، له کوره، کور نه، کور څخه، د کور نه، د کور څخه،

له کور نه، له کور ځینې.

**۶ــ مفعول له:** هغه ده ی چه د اسم په وروسته کښې د (د پاره) لپاره (لره) ادات زیات شوه ی وی لکه: ستا د پاره، کاله د پاره، څکلو د پاره، مالره، آسانولره.

**۷ــ مفعول معه:** هغه ده ی چه د اسم په وروسته کښې (سره) لیا (باندے) ادات زیات شوه ی وی لکه: ما سره، کالو سره، آسانو سره، تفصیلات دے په نحوے کښې وکتل شی.

**۸ــ مضاف الیه:** هغه اسم ده ی چه په سر کے ئے د (د) توره ی زیات شوه ی وی لکه: د کوټے، د کلی.

## د زمان اسم

د زمانے آو وخت نوموونه د زمان اسم وییل کیږی. په پښتو کښې د زمان اسم کوم معینه قاعده نه لری بلکه سماعی دی لکه: پیپری کال، سبز کال، پر نوب کال (پرپیپرز کال)، وسرم کال، الا وسرم کال، پسرلی، اوری (دوبی)، منی،

ژمه ی ، میاشت ، تن ، کله ، کله کله ، کله نه کله ، هوس ، پخوا ، بیا ، وروسته ، پسته ، دوخته ، ناوخته ، نن ، پرون ، ورمه ورځ ، لاورمه ورځ ، گلېز ، بل گلېز ، خرگلېز ، رونه گلېز ، مرڅریک ، تنکه ی برېزر ، برېزر ، تنکی غرمه ، لوره غرمه ، نیمه غرمه ، لویه غرمه ، تکنده غرمه (غرمه) ، او وبنتي غرمه ، ماپښین ، مازدیگر ، شپه ، نن شپه ، برائی ، (پرون شپه ، تره شپه) ، مابنام ، ماسختن ، ملری شومه ، دوه یمه شومه ، دریه یمه شومه ، نیمه شپه ، ملره ی چرگ نغگ ، دوه یم چرگ نغگ ، دریه یم چرگ نغگ او نور .

## دمکان اسم

دځای نوموته دمکان اسم ویل کیږی :

په پښتو کښی دمکان اسم د پرنشته هغه چه شته دوه رازه دی یو قیاسی بل سماعی ؛

قیاسی دمکان اسم — هغه ده ی چه دځینو اسماؤ په وروسته کښی ځینی ادات زیاتېږی هغه هم دری قاعدی لری :

۱— په وروسته کښی دځینو جنس اسمونو په وروسته کښی د (ينه ی) ادات

راوړل کېږي لکه : اوبه ننړه‌ی، پوکننړه‌ی، ایېره ننړه‌ی، اوره ننړه‌ی، توکننړه‌ی .

۲ — دځینو جنس اسمونو په وروستـه کښې ( یانړه ) راوړل کېږي لکه : وسپیانړه، آغزیانړه، زوزیانړه، کوکیانړه .

۳ — دځینو اسمونو په وروستـه کښې ( ځی ) راوړل کېږي لکه : ښوونځی، [illegible]

سمائي ومکان اسم — هغه ده‌ی چه آور پېدو پورے اړه لري اوخانه کومه قاعده نه لري هغه هم دغه دي : پورته، ښکته، ( کښته ) مخکے، وروستـه، خواښئ‌خوا، کینړه‌خوا، لور، پلو، مرخاته، مرپر پواته، ( مرلوېده ) مړوخوا، ( شمال ) پښوخوا، ( جنوب ) دننه، دباندے، شاوخوا، لرے، نږدے، آونور .

# دتصغیر اسم

تصغیر ورکوشی کولو ته وائي :

که چېرے یوه اسم سره دغه سے ادات زیات شو چه دهغه ادات په واسطه سره ورکوټی توب دهغه اسم څرګندېږي نو هغه ته دتصغیر اسم وییل کېږي

په پښتو ژبه کښې تصغیر کله د مینې او احترام او کله د تحقیر او توبیخ او تشویق دپاره استعمالیږي.

په پښتو کښې هر اسم نه تصغیریږي. د تصغیر اسمونه دوه راز دي یو د مذکر اسم او بل د مؤنث اسم.

د مذکر اسم تصغیر د ضه سره کیږي:

۱ــ د خاص اسم یا القابو په وروستو کښې یو کاپ زیاتیږي لکه: تورک، نورک، لالک، دوک، مامک، بابک.

۲ــ د صفت اسمونو په وروستو کښې (ه کی) راوړل کیږي لکه:

وړه کی، غټه کی، ټیټه کی، توره کی، سپینه کی (۱) ښنده کی.

۳ــ وټی: منګوټی، ورکوټی (۲) کوچنوټی.

۴ــ وټکی: منګوټکی، ورکوټکی، کوچنوټکی.

۵ــ ګی: خټګی، پتنوس ګی.

---

(۱) ځینې خلک په محاورې کښې (سپینکه کی) وائي. (۲) په اصل کښې (ووړکوټی) وه.

۶ــ کاکو ، چانو .

دمؤنث اسم تصغیر دغه سے کیږي :

۱ــ ۍ : خوږۍ ، موږکۍ ، اوبڼۍ .

۲ــ که : خورکه ، مورکه .

۳ــ ه ۍ : دصفت اسمونو په وروستۀ کښے : غڼۍ ، ښینۍ .

۴ــ وڼے : ورکوڼے ، کوچنوڼے .

۵ــ ګۍ : بسترګۍ ، کوڼګۍ ، ایندارګۍ .

تنبیه ــ دځینو اسمائو په وروستۀ کښے ځینے نور ادوات (سړی ، رړی، آونور لکه : چرګوړی ، ګډوړی ، آونور ) هم راځي چه هغه اسمونه تصغیروي خو حکمونه ئے په دې پروا اسمائو شامل نۀ دي ددغه دلامه تقریباً وسماعي حکم لري نو ځکه دغلته ذکرنشول .

## دآلے اسم

دآلے اسم هغه شی دهٔ چه دفعل دصدور واسطه وی .

په پښتو کښې د آلې اسمونه دوه رازه دي يو سماعي بل قياسي :

قياسي د آلې اسم — هغه اسمونه دي چه په وروستهٔ کښې ئې (ه ی) راځي آو کله کله د تلفظ د سهولت د پاره ځينې توري د د غه دوه توروته ځکښې زياتيږي لکه :

اوړل وندي — هغه لرګي ليا لښته چه اور پرې لړل کيږي .

نوسه ی — هغه شه ی ده ی چه پوښه ی ور باندې ينول کيږي لکه :

وپښته ، ليانور .

اوبه ورکه ی — هغه لوښی ده ی چه پو ونده يعنې کوچيان د او بوړه ی په کښې تري آو ديوه ځای نه ئې بل ځای ته وړي آو په ځينو ځايو کښې د استعمال د کثرت له لامه په غلط دول سره (اوبه ورکه ی) شوه ی .

تودنه ی — هغه آله ده چه کوټه پرې تو ده وي آو په پارسو (بخاري) ورته وائي .

تپنده ی — د بنائي د آلاتو د جملې ځينې يوه آله ده آو په پارسو (دسپنځام)

ورته وائي .

**خټموښېږی** — دخټو دموښلو آله ده چه په پارسو (گل ماله) ورته وائي .

**غوښنده ی** — دغوښولو آله ده چه د تر کاڼړی آلاتو دجملے ځنه ده آو په پارسو (اره) ورته وائي .

**پړووندی** — دپړولو آله ده چه د جراحي آلاتو دجملے څخه ده آو په پارسو (نشتر) ورته وائي .

**ږنږووندی** — دږنړولو آله ده چه معدني شي لکه : وسپنه یا وزر وشته پرسے رنړ وي آو په پارسو (اسباب صیقل) ورته وائي چه دعربي ځینے آخیستل شوه ی .

**شیندوبږی** — داوبو دشیندلو آله ده چه په پارسو (آبپاش) ورته وائي .

**چواړه ی** — دمچانو دوړلو آله ده .

سماعي دآلے اسم — په پښتو کښے ځینے دآلے اسمونه سماعي هم دي لکه : مچشر (دمچ وشړلو آله) ، لور ، تبر .

## منسوب اسم

منسوب اسم هغه ده ی چه بل اسم ته ئې نسبت وشی .

د منسوب اسم د جوړولو د ول په قیاسیه صفاتو کښې تر دغه عنوان لاندې (قیاسیه صفات چه د اسم نه جوړیږی) بیل لیکل شوی دی .

## د صوت اسم

د صوت اسم هغه اسم ده ی چه د نګ تقلید آو تصویر کوی . د دغه سے اسم نمونه په پښتو کښې د ډیر دی : شرپ ، کړنګ ، غرپ ، ټس ، د نګ آو نور .

# دوهیم څپرکی

## صفت

هغه کلمې دچه دیوه اسم حال آو شان بیانوي (صفت) آو هغه اسم له چه حال آو شان ئې بیانیږي (موصوف) وییل کیږي.

لکه د ( لوی غر، سپینه کوټه ) په کلمو کښې چه لوی آو سپین صفت، غر آو کوټه موصوف دي.

صفت دوه رازه ده ي : یو (سماعي) بل (قیاسي).

سماعي صفت ــ هغه صفتونه دي چه په آوریدو سره څرګندیږي آو په کومے قاعدے سره نه کیږي یعنې مستقله قاعده نه لري. دغه هم په دوه ډوله سره دي:

ملا( وصفیه الفاظ )بل (داعداوو اسمونه دي).

وصفیه الفاظ : هغه لفظونه دي چه په خپله وصفي معني ولري دغه سے الفاظو ته (اصلي صفت) هم وییل کیږي. لکه: سپین، تور، لوی، کوچنی، ښه،

بد ، ښکولی (ښائسته) چټل ، اوږد ، لنډ ، مارت ، تنګ ، آو نور .

په پښتو کښې صفت مخکښې آو موصوف وروسته راځي ، که موصوف مذکر وي صفت د مذکر په دول ذکر کېږي لکه : پوه سړی ، لوی آس ، جګ غر ، خوږ خشکی .

که موصوف مؤنث وي صفت د مونث په دول ذکر کېږي لکه : پوهه ښځه ، لویه آسپه ، جګه ونه ، خوږه ممبند وانړه .

که موصوف مذکروي آو صفت جمع وغواړي (۱) په مفرد آو جمع کښې صفت یو شان وي لکه :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ښه سړی | ښه سړي |
| لوی سړی | لوی سړي |
| ټیټ سړی | ټیټ سړي |
| سپین آس | سپین آسان |

(۱) ځینې صفتونه مېږ نه ري آو جمع کول یې د پښتو د ژبې د قاعدو سره ښه نده وي ځو له اعتبار نشته لکه چه جګ د (جګان) آو لوی د (لویان) په دول جمع کوي ، د دغو صفاتو جمع غلط ده باید ترې ځنګ آو اجتناب وشي .

که موصوف د پروی آ وصفت جمع ولري صفت هم د جمع په ډول استعمالیږي:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| وړوکی مالک | وړوکي مالکان |
| ووړ چرګ | واړه چرګان |
| خوږ خټکی | خواږه خټکي |
| شین بنږ | شنه بنږونه |

که موصوف مؤنث آو د پروی صفت تل د جمع په ډول استعمالیږي:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ښه ښځه | ښې ښځې |
| وړه آسپه | وړې آسپې |
| سپینه کوټه | سپینې کوټې |
| جګه ونه | جګې ونې |

که موصوف د پر آ وصفت د موصوف پر د پروا فرادو شامل وي آو استثنا د

د اعتبار په نظر و نه نیول شي صفت هماغه سے چه پاس بیان شو ذکرکېږي، اما که صفت د موصوف پر هر فرد شامل وي یعنے د موصوف افراد هر یو د هماغه صفت خاوندوي آو مستثنا و نه لري نو البته صفت تکرار ذکرکېږي :

بنه بنه سړي، واړه واړه ماشومان، جګے جګے ونے.

د اعدادو اسمونه — هغه اسمونه دي چه عدد ښئي. لکه چه صفت د یوه اسم حال آو شان ښئي هم غسے عدد د اسم کمیت یعنے ګڼه څرګندوي چه د غه هم وصفت د دولنځه ده ی.

د اعدادو اسمونه پنځه رازه دي : (اصلیه، کسریه، رتبیه، توزیعیه، متقابله)

بے له اصلیه آو کسریه اعدادو نور قیاسي دي چه د هغو بیان به د (وصفیه اعداد) په نامه د قیاسیه صفاتو په بحث کنبے وشي.

اصلیه اعداد — د غه هم دوے برخے دي :

یوے ته بسیط وېل کېږي چه د یوه نه تر لسو پورے دي :

یو، دوه، درے، څلور، پنځه، شپږ، اوه، اته، نه، بلے ته مرکب وائي

چه نهو نه پورته نور درست اعداد دي :

لس ، يو وولس ، دوولس ، ديارلس ، څوارلس ، پنځلس ، شپاړس ، اووه لس ،
اته لس ، نولس ، شل ، يو ويشت ، دوه ويشت ، درويشت ، څلېر ويشت ... الخ .
دېرش ، يو دېرش ، دوه دېرش ، دري دېرش ، څلور دېرش .... څلوېښت ،
يو څلوېښت ، دوه څلوېښت ، دري څلوېښت .... پنځوس ، يو پنځوس ، دوه پنځوس
دري پنځوس ، څلور پنځوس ...... شپېته ، يو شپېته ، دوه شپېته ، دري
شپېته ، څلور شپېته ...... اويا ، يو اويا ، دوه اويا ، دري اويا ، څلور اويا .
... اتيا ، يو اتيا ، دوه اتيا ، دري اتيا ، څلور اتيا ..... نوي ، يو نوي ، دوه نوي ،
دري نوي ، څلور نوي ...... سل ، دوه سوه ........ زر ، دوه
زره ....... کنېر يا زره (۱) دوه کنېر يا زره ........ الخ .

دغو ته عدد او هغه شي ته چه ګڼل کېږي معدود وائي مثلاً : پنځه منې ، نه خټکي ،
دغلته پنځه ته او نه عدد ، منې او خټکي معدود دي .

بسيط اعداد په لاندينو ځايو کښې تغير مينده کوي :

(۱) مليون ، (لس لکه) .

**یو** – چه د لس سره راشي په وروستو کښې ئې یو واو زیات شي: یوولس .

**دوه** – چه د لس، دیرش، څلوېښت، پنځوس، شپېته، اویا، اتیا، نوي، سره راشي وروستي توره ئې لرې کېږي: دوولس، دوودیرش، دوڅلوېښت، دوپنځوس، دوشپېته، دواویا، دواتیا، دونوي .

**درې** – چه د (لس) سره راشي وروستي دوه توري ئې سره ونښلي آو دوار و په ښخ کښې یو الف زیاتېږي: دیارلس، چه د شل سره راشي وروستي توري ئې لرې کېږي: درویشت، چه د دیرش، څلوېښت، پنځوس، شپېته، اویا، اتیا، نوي سره راشي وروستي توري ئې چه مجهوله یې دي په معروفه یې ونښلي: دری دیرش، دری څلوېښت، دری پنځوس، دری شپېته، دری اویا، دری اتیا، دری نوي .

**څلور** – چه د (لس) سره راشي د (ل) توري تښنې لرې کېږي آو د (و) د توري نه وروستو یو (الف) راوړل کېږي: څوارلس، آو که د (شل) سره راشي د واو توري ئې په (ی) ونښلي: څلېرشت .

شپږ — چه د(س) سره راشي د (ږ) توری په الف وبجږی ګرځو غه خای کښې د (لس) لام هم په (س) وبجږی: شپاړس.

نه — چه د (لس) سره راشي وروستني توری ئے په واو وبجږی: نولس.

شل — هر کله چه بسیط اعداو پرے زیات شي دویشت په دول تلفظ کیږی: یو ویشت، دوه ویشت، دریشت . . . . . . الخ. هر کله چه شلو نه مراد وی د (شل) په وروستنه کښې مجهوله یے زیاتیږی: دوه شلے روپۍ، درے شلے ټوپک . . . . . . الخ.

سل — هر کله چه سلو نه مراد وی د (سوه) په دول تلفظ کیږی: دوه سوه، درے سوه. . . . . . الخ.

په پښتو کښے دو دوه ی چه عدد ئے محلے آو معدود وروسته وہیل کیږی لکه: یو سړی، یو آس، یو خښکی، یو کټ.

بے له (یو) نور عددونه هر کله چه د معدود وه سره راشي معدود باید د جمع په دول

ذکرشی لکه : درے سړی، پنځه اسان، لس ښځې، دوه کوټه .

که عدد (یو) او معدود مذکر وي نو عدد چه (یو) دی د مذکر په دول ذکر کېږی لکه چه مثال ئے پاس تېر شو .

که عدد (یو) لیا (دوه) او معدود مؤنث وي نو عدد د مؤنث په دول ذکر کېږی لکه: یوه ښځه، یوه آسپه، دوے مېنځه وانے، دوے تیږے .

عدد چه د پړوي په مذکر او مؤنث کښے د مذکر په دول ذکر کېږی (اما عدد چه د پړوي معدود د جمع په دول ذکر کېږی لکه چه پاس ووېل شو) : دوه سړی، درے ښځے، څلور آسان، پنځه آسپے .

که عدد یو او معدود د (کس) لیا د (تن) لفظ وي عدد د مذکر په دول ذکر کېږی لکه : یو کس، یو تن .

که عدد د پړا او معدود د (کس) لیا د (تن) لفظ وي نو په دغه حال کښے د مذکورو الفاظو په وروستـه کښے د (ه) توره ی راوسل کېږی لکه :

دوه کسه، درے تنه .

کسریه اعداد ــ هغه اسمونه دی چه د اصلیه اعدادو جزؤ آو تونې ښئي: نیمائی ، دریمه ، څلورمه ، پنځمه . . . . . . . الخ .

قیاسی صفت ــ هغه صفتونه دی چه په قاعدے سره کیږی هغه هم د صیغو څخه عبارت ده ی ( فاعل اسم ، مفعول اسم ، مشبه صفت ، د مبالغے صفت ) .

د دغه لامله چه د فعل څخه اشتقاقیږی ( د فعل فرع ) هم ورته ویل کیږی آو د افعالو په بحث کښے به ئے بیان راشی .

بل هغه ډول صفتونه دی چه د اسم یا سماعی صفاتو سره ځینے ادات بالخاصه ( وصفیه الفاظ ) زیات شوی وی .

# قیاسی صفات[1] چه د اسم نه جوړیږی

قیاسی صفات د خپل منسوب په اعتبار په دوه رازه دی ، یو مذکر بل مونث .

که د یوه اسم منسوب مذکر وی قیاسیه صفات ئے په لاندینی ډول سره جوړیږی:

---

(۱) دغه قیاسی صفات منسوب اسم گنړل کیږی .

۱ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (ه ی) راوړل کېږي لکه: پروڼه ی،
کابله ی .

۲ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (نه ی) راوړل کېږي: کلنه ی،
ننګنه ی.

۳ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (ینه ی) راوړل کېږي: میاشتینه ی،
ورځینه ی .

۴ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (ن) راوړل کېږي: خیرن، اوبن
(چه وروسته اوبرن شوی) ژاولن .

۵ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (ین) راوړل کېږي: ورپښمین،
ډبرین .

۶ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (من) راوړل کېږي: خوږمن،
غیرتمن .

۷ـــ دیوه اسم په وروسته کښې (جن) راوړل کېږي: ماښجن غمجن.

۸ — د یوه اسم په وروستہ کښې (ور) راوسل کیږي: زړور، زړه ور.

۹ — د یوه اسم په وروستہ کښې (وال) راوسل کیږي: جو په وال، بنګړیوال.

۱۰ — د یوه اسم په وروستہ کښې (یاله‌ی) راوسل کیږي: توریاله‌ی، ننګیاله‌ی.

۱۱ — د یوه اسم په وروستہ کښې (و) راوسل کیږي: داړو، ښخشو، ګېډو.

۱۲ — د یوه اسم په وروستہ کښې (والا) راوسل کیږي: آس والا، څنړے والا.

په ځینو ځایو کښې چه د اسم سره والا یوځای شي معنی د نښتے په یوے چارے پورے ښنی لکه: ساه والا (یعنے هغه سړی چه ساه پلوري) کنړی والا (یعنے هغه سړی چه کنړی جاروی او وړبدل کوي).

که د یوه اسم منسوب مؤنث وی قیاسي صفات ئے په لاندینی ډول سره جوړیږي.

۱ — دیوه اسم په وروسته کښې تانیثي ( ی ) راوسل کېږي : کابلي ، کندارۍ .

۲ — دیوه اسم په وروسته کښې ( ئی ) راوسل کېږي : کلنی ، ننتنی .

۳ — دیوه اسم په وروسته کښې ( ینی ) راوسل کېږي : میاشتینی ، ورځینی .

۴ — دیوه اسم په وروسته کښې ( یالی ) راوسل کېږي : توریالی ، ننګیالی .

۵ — دیوه اسم په وروسته کښې ( ګنی ) راوسل کېږي : پلارګنی ، خسرګنی .

۶ — دیوه اسم په وروسته کښې ( نه ) راوسل کېږي : خیرنه ، اوبنه ، ژاولنه .

۷ — دیوه اسم په وروسته کښې ( ینه ) راوسل کېږي : د برینه ، وربنجینه .

۸ — دیوه اسم په وروسته کښې ( منه ) راوسل کېږي : خوږ منه ، غیرتمنه .

۹ — دیوه اسم په وروسته کښې ( جنه ) راوسل کېږي : ماښجنه ، غمجنه .

۱۰ — دیوه اسم په وروسته کښې ( وره ) راوسل کېږي : ځښوره ، ژبه وره . ګیډه وره .

۱۱ — دیوه اسم په وروسته کښې ( واله ) راوسل کېږي : بنګړیواله ، چوپه واله .

# قیاسي صفات چه د اصلي صفاتو څخه جوړيږي

د اصلیه صفاتو څخه قیاساً جوړ شوي صفتونه هغه دي چه د وصفي معنی (تصغیر، تاکید، تفریط و بنسٔي.

د صفت تصغیر:

د وصفي معنی د تقلیل د نوښیه صفاتو نه وروسته (چک لیا وبره) راوړل کیږي لکه: سپین چک، تورچک، زیړچک، زرغون چک، شین وبره آو نور. یعنے لږ سپین، لږ تور، لږ زیړ، لږ زرغون، لږ شین.

کله د هغه صفت نه وروسته چه څښے پورے اړه لري (بخوند) راوړل کیږي لکه: خوږ بخوند، تریخ بخوند آو نور.

د وروستي استعمال په لري معنی سره غلط ده ي.

د صفت تاکید:

د صفت دا فادے د بشپړ والي د پاره د نوښیه صفتونه مخکے (تک) راوړل

کېږي چه د غه سې صفا تو ته (مؤکده صفات) وېیل کېږي لکه : تک تور، تک شین، تک زېړ، تک سور .

په پښتو کښې د غه سې تاکیدات ډېر دي لکه : جګ جوړ، رک روغ، روغ رمټ، ددبد . . . . الخ . چه آورېدو ورسره اړه لري .

وصفت مبالغه :

که چېرې د صفت د معنا مبالغه لازمه شي د صفت په سر کښې د (ډېر) کلمه راوړل کېږي : ډېر ښه، ډېر سپین، ډېر خوږ .

که د غوښتنې شي چه مبالغه لا زیاته شي د (ښت[1]، خورا، ډېر ګوره) کلمې استعمالېږي : ښت سپین، ښت خوږ، ښت تریخ، خورا ښه، ډېر ګوره خیرن .

که د غوښتنې شي چه مبالغه د دغه نه هم پسې ډېره شي نو د (ښت، خورا، ډېر ګوره) سره د (ډېر) کلمه یو ځای استعمالېږي : ښت ډېر سړی، خورا ډېر غنم .

---

(۱) په مؤنث کښې (ښته) استعمالېږي

خو را د پر ناولای، برګوره د پښکوله ی .

وصفیه اعداد — د (توزیعیه اعداد) او (رتبیه اعداد) او (متقابله اعداد) څخه عبارت ده ی .

توزیعیه اعداد — هغه ګڼنې دي چه د یو شي مساوي ټوټې ښئي .

په پښتو کښې توزیعیه اعداد په لاندېني دول سره کېږي :

زره زره،

۱ — د ټوټ عدد تکرار و ویل کېږي لکه : یو یو ، دوه ، دوه ، لس لس ، سل سل ،

۲ — کله دوه د پاره چه د توزیعي عدد د مساوات ښئي د ګڼنې نه وروسته (یز) راوړل کېږي لکه : پنځه لسیز روپۍ نې ورکړې ، اته ویشتیز باندے خرڅے کړے .

کله کله (یز) خاص نسبت بیانوي لکه : یو ولس ټکیز ټوپک ، پنځه ټکیزه توما نچه ، شونډکیز چرګ .

۳ — کله د توزیعي عدد د مساوات د ښودلو د پاره د عدد په وروسته کښې (ګونے) راوړل کېږي : په پنځه لس ګونے وا خیستے ، په شلګونے

غرڅے کړے .

کله کله ( ګوني ) نسبت بیانوي لکه : شل ګوني ، پنځه ګوني (۱)

رتبیه اعداد : هغه ګڼهٔ دي چه دیوه شي درجه او مرتبه ښئي . دوغه دپاره

داصلیه اعدادو نه وروسته (م) راوړل کیږي : څلورم ، پنځم ( چه داستعمال

دکثرت او دتلفظ دسهولت له لامه د (ه) توری حذف شوی ) شپږم ، اتم ،

سلم ، زرم .

که چیرے داصلي عدد وروستی توری د ( الف ) لیا (ه) لیا (ی) وي

(یم) راوړل کیږي لکه : دوه یم ، درے یم ، اویایم .

متقابله اعداد : هغه ګڼهٔ دي چه سره مخې ( متقابله ) وي په پښتو کښے دوغه

دپاره د دواړو متقابلو اعدادو په منځ کښے ( په ) راوړل کیږي . مثلاً : دوه په دوه ،

پنځهٔ په پنځهٔ ، لس په لس ، سل په سل ، زر په زر ، یو په درے ، څلور په نه ، اته په شپیته ،

(۱) -پخوا د افغانستان په مسکوکاتو کښے یو مسکوک وو چه په پنځه روپۍ پېژندل کیده او خلقو به په پښتو (پنځه ګوني) ویله هوس هم دغه مسکوک کاغذ ونوټ جاري دي ، پنځه ګونئ ، شل ګونئ او نور و بیل کیږي .

څلو ښت په اوه سوه ...... الخ.

فائده — د دونه دپاره چه وپېژندل شي چه يوه کلمه صفت ده ي، که نه، نو د هغې کلمې په وروسته کښې د ے (شه ي) راوړل شي که معنی سمه وخته خو صفت ده ي او سمه ونه خته صفت نه ده ي. مثلاً (ښه، نابود، سپين، خوږ) صفت دي ولې چه که ښه شه ي، نابود شه ي، سپين شه ي، خوږ شه ي وويل شي سمه ده خو د (آس، اخت) کلمې صفت نه دي ځکه چه، آس شه ي، اخت شه ي نه ويل کېږي او که وويل شي معنی تنے نه حاصلېږي.

## د صفاتو د تلفظ آووښته

په پښتو کښې صفت هم د اسمانو په څېر په دوه د وله سره په لاندينو ځايو کښې آوړي:

تنبيه — که صفت او موصوف دواړه په يوے جملے کښې ذکر شي صفت تل په دغه لاندينو ځايو کښې آوړي مګر موصوف که د هغه د ول اسمانو څخه ده چه د نومونو د آووښتو د قاعدے په موجب سره آووښته د قواعدو په موجب د غلته هم آوړي که د هغه د ول اسمانو څخه نه وه نه آوړي.

ګڼړه صفت د آوو ښتو په وخت کښې د موصوف تابع نه ده ی .

۱ــ که صفات جمع ولري آو د جمع د (۲ ، ۳ ، ۸ ، ۱۰ ، ۱۱ ، ۱۲ ، ۱۴ ، ۱۵ ، ۱۶)

قاعدے په موجب سره جمع شي و دغه د ول صفاتو مفرد و جمع په د ول ذکرکېږي

آو جمع ئے په وروستـه کښې (و) ېښده کوی : دکوچنی کتاب خاوند ، دواړه

بلک معلم ، د زرغوے وــنے پاڼړے ، د غلیمي خبرے ، دکوچنو کتابو خاونده

دوړو ماڼکانو معلم ، د زرغونو ونو پاڼړے ، د غلیمیو خبرے .

۲ــ هغه صفت اسمونه چه جمع و نه لري آو یائے ولري مګر د جمع و پاسنیو قواعدو

په موجب سره ئے جمع ممکنه نشي د دغه د ول صفاتو مفرد و پرخپل حال پاتے کېږي

آو جمع ئے په وروستـه کښې (و) ېښده کوی : ښه سړی ته ، ښو سړو ته ، لوی

غره ته ، لویو غرو ته .

## هغه ځایونه چه صفات په کے آوړی دغه دي :

الف ــ هرکله چه موصوف و صفت مضاف الیه واقع شي :

دلړی د دول مثال یعنې هغه چه مفرد دے د جمع په دول استعمالیږی آو جمع ئے په وروستهٔ کښے (و) ملنده کوی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| د زاړه سړی | د زړو سړو |
| د ښند داګ | د ښنو داګو |

د دوه یم د دول مثال یعنې هغه چه مفرد دے نه آوړی آو جمع ئے په وروستهٔ کښے (و) ملنده کوی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| د ښهٔ سړی | د ښو سړو |
| د کرغیړن سړی | د کرغیړنو سړو |

ب — کهٔ د دغه سے صفاتو د موصوف سره د مفعول (په ته د مفعول په) ادات راشی :

د لمړی د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ساندہ سړی تہ | ساندو سړو تہ |
| زرغونہ کالی تہ | زرغونو کالو تہ |

د دوہیم د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| تور سړی تہ | تورو سړو تہ |
| خیرن لوبنی تہ | خیرنو لوبنو تہ |

ج — کہ د دغسے د ول صفتونو د موصوف سرہ آړوونکی توری آو کلمات راشی:

دلمړی د ول مثال

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| کاږہ لرگی باندے | کږو لرگو باندے |
| سرہ کور باندے | سرو کورو باندے |

د دوهم د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| پرسپین مخ | پرسپینو مخونو |
| پرخیسرن مخ | پرخیسرنو مخونو |

د — که دوغه د ول صفتونو موصوف د متعدی فعل د ماضي صیغې فاعل واقع شي :

د لمري د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| زیږه سړی ووا یه | زیږو سړو ووا یه |
| وسکي لړم وچیچه | وسکولړا نو وچیچه |

د دوهم د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| سپین منګور وچیچه | سپینو منګورانو وچیچه |

| | |
|---|---|
| تورغوندل وچیچه | تورو غوندلانو وچیچه |

ه — که دوغه د ول صفتونو موصوف د مخصوص لازمي (ل) والا مصادرو د ماضي صيغې فاعل واقع شي.

دلمړي د ول مثال :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| سپين ږيري سړي وژړل | سپين ږيرو سړو وژړل |
| کوچنی ہلک وخندل | کوچنو ہلکانو وخندل |

ددوهم د ول مثال :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| لوی سپي وہنگول | لویو سپو وہنگول |
| تورخره وداڼگل | تورو خرو ودانگل |

و — هر کله چه دوغه د ول صفتونو موصوف مستثناء واقع شي :

دلمړي د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| بے پینے روپی | بے پینو روپیو |
| پرته له پینے روپی | پرته له پینو روپیو |

دوهم د دول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| بے لوی سری | بے لویو سریو |
| پرته له لوی سری | پرته له لویو سریو |

تبصره — د (بے) ادات د نفی ادات هم ده ی نو هر کله چه دغه توره ی د نفی د پاره د یوه صفت سره راشی هغلته هم هغه صفت سم له پاسنی اصول سره تغیر مینده کوی.

ز — هر کله چه دوغه د ول صفاتو موصوف منادا واقع شی :

دلری د ول مثال :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| | بے سرو پیرنگو |

دوهیم دول مثال :

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| یے سپینو پښتنو | |

تبصره — مفرد صفت که منادا واقع شي نه آوسړی نو ځکه د غلته د مفرد په ځای کښے څه لیکل شوی نه دی .

داعدادو و اسمونه هم په همدغه پاسني حالاتو کښے هر کله چه معدود و یے آووښتهی وي آوسړی یعنے داعدادو د اسمونو په وروستنه کښے هم ( و ) زیاتیږی لکه : دوو سړو ووهلم ، څلورو سړو وته مے وویل

# درے یم څپرکی

## کنایات

کنایے درے دی : ضمیر ، د اشارے اسم ، مبهمات .

## ضمیر

ضمیر هغه کلمه ده چه د اسم ځای نیسی یعنے د اسم قائمقام دی چه هماغه اسم ته ضمیر ئے په ځای راځی (مرجع) وئیل کیږی . مثلاً د وړے پښتنے ځواب چه (آڅک کله کابل ته ځی؟) که دوئیل شی چه (هغه اختره پورے کابل شو) ولته (هغه) چه د آڅک د نامه پرځای راغلی ضمیر او (آڅک) ئے مرجع ده ی.

ضمائر درے رازه دی :

### ۱ــ شخصی ضمیرونه

شخصی ضمیرونه هغه ضمیرونه دی چه معین شخص ښئی ، هغه هم درے دی :

متکلم (۱)، مخاطب، غائب:

| | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| متکلم | : زه (ما) | موږ . |
| مخاطب | : ته (تا) | تاسې (تاسو) |
| غائب | : هغه . | هغوی . |

هر کله چه مفرد متکلم آو مفرد مخاطب شخصیه ضمیرونو د ماضي د متعدي فعل فاعل یا مفعول (۲) (پر ته د مفعول به) یا مستثنا یا مضاف الیه واقع شي یا د آر دو نکو توروآو کلماتو سره (تر، څنګ، لاندې، باندې، پر، پورې، سره، غونډې، په شان، شانته، پرواز، په دول، په دود، ترا، په څېر) راشي د (زه) پر ځای (ما) آو د (ته) پر ځای (تا) استعمالېږي.

(۱) متکلم: د خبرې ویونکی، مخاطب: د خبرې آورېدونکی، غائب: هغه ده ی چه حاضر نه وی آو خبره نه کېږي. (۲) ۱- مفعول الیه چه ادات ئې (ته) ده ی، ۲- مفعول فیه چه ادات ئې (په) ده ی، ۳- مفعول منه چه ادات ئې (له) ده ی، ۴- مفعول له چه ادات ئې (د پاره) ده ی. ۵- مفعول معه چه ادات ئې (سره) ده ی چه و اسمانو په احوال آو نو کښې ئې تفصیلات راغلي.

د مخاطب د جمع ضميرونه که څه هم دوه دی خو د استعمال په موقع کښے فرق نه لری يعنے د دواړو د استعمال په هره موقع کښے جائز دی . او د متکلم په ذوق پورے اړه لری .

## د شخصي ضميرونو د مفعول کېدلو دول

شخصي ضميرونو سره که د مفعول ادات راشي مفعول کېږي :

| شخصي ضميرونه | مفعول به | مفعول اليه | مفعول فيه | مفعول منه | مفعول له | مفعول معه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ځه (ما) | ځـئے | ماته | په ما | له ما | ما د پاره | ما سره |
| ته (تا) | تـئے | تاته | په تا | له تا | تا د پاره | تا سره |
| هغه (٠) | هغـئے | هغه ته | په هغه | له هغه | هغه د پاره | هغه سره |
| مږ (٠) | مږـئے | مږ ته | په مږ | له مږ | مږ د پاره | مږ سره |
| تاسے (تاسو) | تاسـئے | تاسے ته | په تاسے | له تاسے | تاسے دپاره | تاسے سره |
| هغوی | هغوی ئے | هغوی ته | په هغوی | له هغوی | هغوی دپاره | هغوی سره |

## د شخصي ضميــــرونو اضافي حالت

شخصي ضميرونه کله کله چه د ځينو اســـمونو او فعلونو سره يو ځاى شي مضاف اليه شي په دغه ســـے حال کښي د ضميرنه مخکښي د (د) توره ى چه د اضافت ادات ده ى راځي لکه:

| | |
|---|---|
| د ما آس | د ما چاره |
| د تا آس | د تا چاره |
| د هغه آس | د هغه چاره |
| د مږ آس | د مږ چاره |
| د تاسو آس | د تاسو چاره |
| د هغوى آس | د هغوى چاره |

تنبيه ـــ که څه هم اصــلي قاعدے د اضافي حالت د شخصي ضميرونو پاســـنه ى اصول ده ى او ځينے پښـــتانـــهٔ هم په همدغه دول سره وائي مگر هوس على العموم د (دما) پرځاى (زما) او د (دتا) پرځاى (ســـتا) او د (مږ) پرځاى (زمږ) او د (تاسو) پرځاى (ســـتاسو) اســـتعما لوى.

# ۲ـ نسبي ضميرونه

نسبي ضميرونه هغه ضميرونه دي چه نسبت بيانوي هغه هم دوه رازه دي. يو د ماضي دپاره، بل د حال او استقبال دپاره:

| | هغه نسبي ضميرونه چه د ماضي دپاره استعمالېږي | هغه نسبي ضميرونه چه د حال دپاره استعمالېږي |
|---|---|---|
| مفرد متکلم: | وم | يم |
| مفرد مخاطب: | وے | يے |
| مفرد غائب: | وُه (د مذکر دپاره)<br>وَه (د مؤنث دپاره) | دی (د مذکر دپاره)<br>ده (د مؤنث دپاره) |
| جمع متکلم: | وو | يو |
| جمع مخاطب: | وی | يئ (ياست) |
| جمع غائب: | وه (د مذکر دپاره)<br>وے (د مؤنث دپاره) | دی |

دغه ضمیرونه دمنسوب الیه نه وروسته راځي :

| دوهم ډول مثال | دلمړی ډول مثال |
| --- | --- |
| پوه یم | عالم وم |
| پوه یې | عالم وې |
| پوه دی / پوه ده | عالم وُه / عالمه وه |
| پوه یو | عالمان وو |
| پوه یئ | عالمان وئ |
| پوه دي / پوهې دي | عالمان وو / عالمانې وې |

دغه ضمیرونه په افعالو کښې په بعیده ماضي، احتمالي ماضي، او نقلي ماضي کښې او دتنبیه په اشارو کښې هم استعمالیږي په عین حال کښې دربط ادات هم دي

تبصره — دغه ضمیرونه کله دفعل پرځای هم استعمالیږي لکه په دغو جملو کښې چه (ترخوده ی راته خه بغلته وم، ترخوخه راځم ته به هم غلته یې) فعلونه دي.

په دغه ځای کښې باید د (ول) او د (یل) ځخه چه غیر مستقل مصدرونه دي

اشتقاق شوی دی چه د اشتقاق په قواعد و واقفت لری ، اما دومره خبره ده چه غیر مستعمل مصدر ناقص وی آو بر غیر مستعمل مصدر ده مستعمل مصدر په کار ده ئ دغلته کېدای شی چه وه وایو چه دغه دوه د (هوسېدل) مستعمل مصدر غیر مستعمل مصدر و نه دی . لکن دو غه ددلا مه چه د (هوسېدل) مصدر تام ده ئ هغه دغیر مستعمل مصدر په کار نه ده ئ ځکه چه غیر مستعمل مصدر د ناقص مستعمل مصدر متمم دی آو دغه د هغې کلمې سره هېنده ده اما کېدای شی چه مستثنائے وګنړو .

هر دول چه دی مقصد دغه دی چه دغه ضمیر و نه په ځینو ځایو کښې فعل هم وی .

که څوک وه وائی چه یو شی هم ضمیر آو هم فعل څنګه کېدای شی ؟

دغه به دپښتو خصوصیت وی . تقریباً په عربی کښې ئے هم نظیر شته مثلاً په عربی کښې د (علی ، عدا ، حاشا) توری په عین حال کښې افعال هم دی حروف هم اسماء افعال لکه (آ ، حی ، آمین) چه لره ئ د (ئیئت یعنے راشه په معنی آو دوه یم د (اجب دعائی یعنے دعا مے قبوله که) په معنی ده ئ اسمونه دی اما د فعل معنی ورکوی چه هاغه توری آو اسمونه فعل کېدای شی نو په پښتو کښې هم چه ضمیر فعل شی

څه عیب لري؟ دغه به دڅرب خصوصیت وي .

## ۳ــ فعلي ضمیرونه

فعلي ضمیرونه هغه ضمیرونه دي چه په افعالو او صیغو کښې استعمالیږي هغه هم دوه رازه دي : یو (بسیط فعلي ضمیرونه) بل (مرکب فعلي ضمیرونه) .

الف ــ بسیط فعلي ضمیرونه هغه دي چه اضافي حالت نه لري او یوازې په افعالو کښې استعمالیږي هغه هم دغه دي :

| | مفرد | جمع |
| --- | --- | --- |
| متکلم : | م | و |
| مخاطب : | ې | ئ |
| غائب : | ه (د مذکر دپاره) | ل (د مذکر دپاره) |
| | له (د مؤنث دپاره) | لې (د مؤنث دپاره) |
| | ي (مشترک) | ي (مشترک) |

پاسني دوه د غائب مفرد او جمع ضمیرونه یوازې په ماضي صیغو کښې استعمالیږي (پرته د احتمالي ماضي) او دریم ضمیر په احتمالي ماضي ، حال ، استقبال ، التزامي ،

اجباري، اقتداري، امر، نهي ټولو کښې استعماليږي، د غائب مفرد ضمير چه د مذکر د پاره
ده ی په لاندېنو مصادرو کښې استعماليږي.

۱- په ځينو متعدي (ل) والا مصادرو کښې چه د استعمال موقع ئې په آورېدو پوهې اسه لري.

۲- په درست (ب) د ول (ول) والا مصادرو کښې يعنې ټولو مصادرو کښې چه د فعل ماده ئې
صفت، يا د مفعول اسم مخفف، يا منسوب اسم نه وي.

۳- په درست (ب) د ول (ېدل) والا مصادرو کښې يعنې هغه چه د فعل ماده ئې صفت يا د مفعول
اسم مخفف، يا منسوب اسم نه وي. په نورو درستو صيغو کښې لرې کېږي.

د مؤنث مفرد غائب ضمير هم په ټولو مصادرو کښې استعماليږي خو کله کله په هغو مصادرو کښې
چه د غائب مفرد مذکر ضمير لرې کېږي د مؤنث د ضمير نه يواځې د (ل) توره ی لرې کېږي.

په عمومي ډول سره د نه ضميرونه: (بسيط فعلي ضميرونه) په لاندېنو صيغو
کښې استعماليږي:

۱- د ماضي په درستو صيغو کښې (د تمنائي ماضي) نه پرته د متعدي فعل په مفعولي حالت کښې

(هرکله چه ضمیر مفعول واقع شي) مثالونه دے په افعالو کښے وکتل شي .

۲ — دنولو لازمي او متعدي فعل حال ، التزامي ، اقتداري ، اجباري ، استقبال ، امر ، نهي په صيغو کښے هرکله چه ضمير فاعل يې نائب د فاعل واقع شي .

۳ — د غير مخصوص لازمي (ل) والا مصادرو د ماضي په نولو صيغو کښے د (تمنائي ماضي) نه پرته .

ب — مرکب فعلي (۱) ضميرونه هغه دي چه فعلي او اضافي حالت دواړه ولري او هغه هم دغه دي :

| جمع | مفرد | |
|---|---|---|
| مو | ــے | متکلم : |
| مو | دے | مخاطب : |
| ئے | ئے | غائب : |

د فعلي ضميرونو فعلي حالت :

(۱) مرکب ځکه وېيل شوي چه دغه ضميرونو توري ديوه نه د يېر دي .

د فعلي ضمیرونو فعلي حالت هغه حالت دهٔ چه ضمیر د فعل سره راشي ؛ د غه ضمیرونه په فعلي حالت کښې په لاندېنو صیغو کښې په لاندېنۍ دول سره استعمالېږي ؛

۱ — د ماضي په درستو صیغو د متعدي فعل په فاعلي حالت کښې ( هر کله چه ضمیر فاعل واقع شي ) مثالونه دے په افعالو کښې وکتل شي .

۲ — د حال ، التزامي ، اجباري ، اقتداري ، امر ، نهي ، استقبال ، د صیغو په مفعولي حالت کښې ( هر کله چه ضمیر مفعول واقع شي ) مثالونه دے په افعالو کښې وکتل شي .

۳ — د مخصوص لازمي ( ل ) والا مصادرو د ماضي په ټولو صیغو کښې مثالونه دے په افعالو کښې وکتل شي .

د فعلي ضمیرونو اضافي حالت هغه حالت دهٔ چه ضمیر د اسم سره راشي . هر کله چه د یو خصوصي (۱) معنی د افادے د پاره دوه اسم یو ځای شي هغه ته اضافت وییل کیږي چه د هغو نه یو مضاف بل مضاف الیه دی .

(۱) د خصوصي معنی نه تملک ، اختصاص ، نوعیت ، اصلیت ، تشبیه ، مراد ده .

په پښتو کښے مضاف الیه مخکے آو مضاف وروسته راځي په پښتو کښے نے

نښه (د) ده ی چه مضاف الیه نه مخکے راځي لکه: د پښتو ژبه ، د کاله کالی .

که مضاف الیه شخص وی نو د مضاف نه وروسته د مضاف الیه پر ځای د مرکب فعلی

ضمیرونو نه یو راوړل کیږی:

| لمړی مثال | دوهم مثال |
| --- | --- |
| کتاب مے | وظیفه مے |
| کتاب دے | وظیفه دے |
| کتاب ئے | وظیفه ئے |
| کتاب مو | وظیفه مو |
| کتاب مو | وظیفه مو |
| کتاب ئے | وظیفه ئے |



# د اشارے اسم

د اشارے اسمونه هغه لفظونه دي چه په هغه سره معين سړی يا شی ته اشاره کيږي. هغه سړی يا شی ته چه هغه ته اشاره کيږي مشار اليه وييل کيږي مثلاً: په (دغه کور، هغه سړه ی) کښے (دغه، هغه) اشارت او (کور، سړه ی) مشار اليه دي.

د اشارے اسمونه د مشار اليه په نسبت پنځه رازه دي:

د ذات، د تمثيل، د مکان، د تنبيه، د مقدار اشاره.

د ذات اشاره:

الف — ده: لره ی توره ی خو ځکه ی لری د مذکر ذوی العقولو اشارے د پاره ده ی چه نږدے وی، په لاندينو ځايو کښے استعماليږي:

۱ — هر کله چه مشار اليه فاعل د هغه ماضي فعل چه د مخصوص لازمي لام والا مصادرو څخه اشتقاق شوه ی وی، ده وژړل، ده وخندل، ده ودانګل.

۲ — د ماضي په صيغه متعدي افعالو کښې استعماليږي چه مشار اليه فاعل واقع شي : ده ووا يه ، ده پرې کړ ، ده ور بيا وه .

۳ — هر کله چه مشار اليه مفعول (پرته و مفعول به) واقع شي : ده ته ، په ده ، له ده ، ده وپاره ، ده سره .

۴ — هر کله چه آس ونکو توره آو کلماتو سره راشي : ده څخه ، ده څنګه ، ده لاندې ، ده باندې ، پرده ، ده پورې ، ده غونډې ، ده په څير ، ده په شان ، ده شانته ، ده په راز ، ده په دول ، ده په دوو ، تر ده .

۵ — هر کله چه مشار اليه مضاف اليه واقع شي : ده ده کتاب ، ده ده کور ، په بل عبارت سره اُلے استعماليږي چه د (چا) د پوښتنې په ځواب واقع شي .

٦ — هر کله چه مشار اليه مستثنا ، واقع شي : بې ده ، پرته له ده .

ب — دهٔ ی : پا سني په څير د مذکر ذوي العقولو اشارے د پاره ده ی چه بيځ د وي آو په لاندينو ځايو کښې استعماليږي :

۱ — هر کله چه مشار اليه د غير مخصوص لازمي لام والا مصادرو د ماضي صيغې فاعل واقع

شوه‌ی وی؛ ده‌ی کېناست، ده‌ی څلاست.

۲ — په حال، استقبال، اقتداری، التزامی، اجباری، امر، نهی، (که مشارالیه فاعل یا مفعول، او فعل لازم یا متعدی وی.) ټولو کښې استعمالېږي لکه: دې ژاړي، ده‌ی به وخاندي، ده‌ی پرې کوي، ده‌ی به وه وهي.

۳ — د متعدی افعالو په ماضي صیغو کښې چه مشارالیه مفعول واقع شي استعمالېږي: ده‌ی ئې وه واهه.

په بلې عبارت سره داسې استعمالېږي چه په هغه ځای کښې (ده) استعمال نشي یا د (څوک) د پوښتنې په ځواب واقع شي.

ج — دے د (ده) مقابل او د مؤنث ذوی العقولو اشارې د پاره ده‌ی چه نږدې وي په هغو ځایو کښې استعمالېږي چه هغه استعمالېده.

د — دا: د ده‌ی مقابل او د مؤنث ذوی العقولو اشارې د پاره ده‌ی چه نږدې وي په هغو ځایو کښې استعمالېږي چه هغه استعمالېده.

هـ — دوی: بې له کوم قید او شرط د دواړو ذوی العقولو اشارې د پاره چه

نږدې وي ( مذکرآ ومؤنث دواړ ودواړه ) استعمالیږي لکه : دوی وژړل ، دوی پرېوتل ، دوی پرېکړ ، دوی ژاړي ، دوی پاڅیږي ، دوی وهي ، دوی وبل کېږي ، دوی به وخاندي ، دوی به ځي ، دوی به مات کي ، دوی به وربېږي .

تنبیه — دغیرذوي العقولو اشارے اسمونه جمع نه لري .

و — دغه : د مذکر ذغیرذوي العقولو دپاره چه نږدې وي هرکله استعمالیږي ، دمؤنث غیرذوي العقولو دپاره په لاندینو ځایو کښې استعمالیږي .

۱ — د ماضي صیغو په بڼه لازمي افعالو کښې استعمالیږي چه مشار الیه دبڼه فعل فاعل وي چه د غیرمخصوص لازمي لام والامصادرو څخه اشتقاق شوه وي : دغه پریوته ، دغه ځلاسته .

۲ — په حال ، استقبال ، اقتداري ، التزامي ، اجباري ، ( که مشار الیه فاعل یا مفعول آ وفعل لازمي یا متعدي وي ) ټولو کښې استعمالیږي : دغه دانګي ، دغه ځي ، دغه وهي ، دغه دے وهي ، دغه به دے وه وهي .

۳ — د ماضي په بڼه متعدي افعالو کښې استعمالیږي چه مشار الیه مفعول واقع شي :

دغـه ئې وه وهـه، دغـه ئې وشـرله، دغـه ئې ماته کړه، دغـه ئې پرې کړه.

د ذوي العقولو دپاره هـلـه استعمالیږي چه عام لیا خاص اسـم ورسره ذکرشي:

دغه سړی وژ رسال، دغه سړی وه واهـه، دغه آخـڅ وخـنـدل، دغه وتـک وربراوه.

بې له ذکره عام آو خاص اسـم څخه د ذوي العقولو دپاره هـلـه استعمالیږي چه تحقیر

آو استخفاف مراد وي.

تنبیه — د دغـې اشارې مخفف کول د (دا) په دول د ژبې د آسانې آو

دو دسره بنيده وه.

ز — دغـې: د مؤنث غیر ذوي العقولو دپاره چه نږدې وي په لاندېنو ځایو

کښې استعمالیږي.

۱ — هر کله چه مشار الیه د هغه لازمي فعل د ماضي صیغې فاعل واقع شي چه د لازمي لام

والا مصادرو څخه اشتقاق شوې وي: دغـې اسپې و نوخل، دغـې اسپې

وو انګل.

۲ — د ماضي په هغه متعدي افعالو کښې استعمالیږي چه مشار الیه فاعل واقع

شي: دغې ګړې ده واېه، دغې مېږې پېښو لاندې کړ.

۳ — هر کله چه مشار اليه مفعول (پرته د مفعول به) واقع شي: دغې ته، په دغې، له دغې، دغې د پاره، دغې سره.

۴ — هر کله چه د آر وونکو توروآو کلماتو سره راشي: دغې تحت، دغې څنګ، دغې لاندې، دغې باندې، پر دغې، دغې پورې، دغې عوض، دغې په څېر، دغې په شان، دغې شانته دغې په راز، دغې په دول، دغې په دود، تر دغې.

۵ — هر کله چه مشار اليه مضاف اليه واقع شي: د دغې لاس، د دغې کونډې زوړ

۶ — هر کله چه مشار اليه مستثنا، واقع شي: بې دغې، پرته له دغې.

تنبيه — د دغې اشارې مخففه کول د (دې) په دول د ژبې د اساس آو دود سره بېنده ده.

ح — بعنه: د ذوي العقولو آو غير ذوي العقولو اشارې د پاره چه لرې لرې وي په بعنو ځايو کښې چه (دغه) استعمالېده استعمالېږي آو درست احکام آو

شرایط چه مذکورے اشارے باندے جاري آو په ښځے کښے ملحوظ وه پر دغے باندے هم جاري آو ملحوظ دي .

ط ـ ښځے : دمؤنث ذوي العقولو آو غیر ذوي العقولو اشارے دپاره چه لیرِ لرے وي په ښځو ځایو کښے چه ( دے ) استعمالیده واستعمالیږي ، آو درست احکام آو شرایط چه مذکورے اشارے باندے جاري آو په ښځے کښے ملحوظ وه پر دغے باندے هم جاري آو ملحوظ دي .

ی ـ ناغه : دذوي العقولو آو غیر ذوي العقولو اشارے دپاره چه لرے وي په ښځو ځایو کښے چه ( دغه ) استعمالیده واستعمالیږي آو درست احکام آو شرایط چه مذکورے اشارے باندے جاري آو ملحوظ وه پر دغے هم جاري آو ملحوظ دي .

ك ـ ناغے : دمؤنث ذوي العقولو آو غیر ذوي العقولو اشارے دپاره چه لرے وي په ښځو ځایو کښے چه ( دغے ) استعمالیده ، استعمالیږي ، آو درست احکام آو شرایط چه مذکورے اشارے باندے جاري آو په ښځے کښے ملحوظ وه ، دغے باندے هم جاري آو ملحوظ دي .

ل ــ هو غه : د ذوی العقولو او غیر ذوی العقولو اشارے د پاره چه د پرکړے

وی په مخوڅا یو کښے چه (دغه) استعمالیده استعمالیږی او درست احکام او

شرایط چه مذکورے اشارے باندے جاری او په مخنے کښے ملحوظ وه پردغے

باندے هم جاری او ملحوظ دی .

م ــ هوغے : د مؤنث ذوی العقولو او غیر ذوی العقولو اشارے د پاره چه

د پرلرے وی په مخوڅا یو کښے چه (دغے) استعمالیده استعمالیږی او و

درست احکام او شرایط چه مذکورے اشارے باندے جاری او په مخنے کښے

ملحوظ وه پردغے باندے هم جاری او ملحوظ دی .

## د ذات د اشارے د تلفظ او وښته

که مشارالیه د ذات د اشارے دیوه نه د پروی په لاندینو ځایو کښے د اشارے

د وروستی توری پر ځای د (واو) توره ی راو رسل کیږی :

ا ــ هر کله چه مشارالیه مفعول (پرته د مفعول به) واقع شی : دغوته ، مخوته ،

ماغوته ، هوغوته .

۲ — هر کله چه مشارالیه مضاف الیه واقع شي: د دغو ، د هغو، د دغو، د هوغو.

۳ — هر کله چه آس، او ځای تورو او کلماتو سره راشي: د غو څخه ، د غو څنګه ، د غو لاندې ، د غو باندې ، د غو پورې ، پر دغو ، د غو څنګ ته ، د غو څخه ، د غو په شان ، د غو شاته ، د غو په راز ، دغو په د ول ، د غو په دود ، تر دغو .

۴ — هر کله چه د مخصوص لازمي لام والامصادرو د ماضي صیغې فاعل واقع شي: دغو وژرل ، هغو وژرل ، داغو وژرل ، هوغو وژرل .

۵ — هر کله چه د متعدي افعالو د ماضي صیغې فاعل واقع شي: دغو وه وهلم ، هغو وه وهلم ، داغو وه وهلم ، هوغو وه وهلم .

۶ — هر کله چه مشارالیه مستثنا واقع شي: بې دغو ، بې هغو ، پرته له داغو ، پرته له هوغو .

د تمثیل اشاره :

الف — دغه : د نږدې اشارې د پاره استعمالېږي: دغه هلک ، دغه پلن غوږ دی ، دغه بڼ .

د دغه اشاره د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځینو ځایو کښې
(داسې) شوې مثلاً وائي : داسې ملک ، داسې پلن غوبره ی ، داسې بنځ

ب — هغسې : د لرې اشارې دپاره استعمالیږی : هغسې ملک ،
هغسې پلن غوبره ی ، هغسې بنځ .

د دغه اشارت د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځینو ځایو کښې
(هسې) شوې مثلاً وائي هسې ملک ، هسې پلن غوبره ی ، هسې بنځ .

ج — ‌اغسې : د لرې د اشارې دپاره استعمالیږی : اغسې ،
ملک ، اغسې پلن غوبره ی ، اغسې بنځ .

د دغه اشاره د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځینو ځایو کښې
(اسې) شوې مثلاً وائي : اسې ملک ، اسې پلن غوبره ی ، اسې بنځ

د — هوغسې : د ډېرې لرې اشارې دپاره استعمالیږی : هوغسې
ملک ، هوغسې پلن غوبره ی ، هوغسې بنځ .

## د مکان اشاره :

الف ــ دغلته : د نږدې اشارې دپاره استعمالیږي : دغلته کېنه، دغلته وه .

په ځینو ځایو      او قبایلو کښې د دغې اشارې پرځای (دلې) استعمالیږي .

ب ــ هغلته : د لرې اشارې دپاره استعمالیږي : هغلته کېنه . هغلته وه .

د غه اشاره د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت د لامله په ځینو ځایو کښې (هلته) شوې او په ځینو ځایو او قبایلو کښې د دغې اشارې پر ځای (هلې) استعمالیږي .

ج ــ اغلته : د لرې اشارې دپاره استعمالیږي : اغلته کېنه، اغلته وه .

دغه اشاره د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت د لامله په ځینو ځایو کښې (النه) شوې .

په ځینو ځایو او قبایلو کښې د دغې اشارې پر ځای (الې) استعمالیږي .

د – هوغلته : د ډېر لرې اشارې د پاره استعمالېږي : هوغلته کښېنه ، هوغلته ده .

دغه اشاره د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځينو ځايو کښې (هولته) شوې .

په ځينو ځايو او قبائلو کښې د دغې اشارې پر ځای ( هولې ) استعمالېږي چه وروسته د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځينو ځايو کښې بيا (هورې) شوې .

## د تثنيه اشاره :

الف – دغه دوه ي : د نږدې اشارې د پاره استعمالېږي ، د دغې اشارې مخففه ول د ( داوه ي ) په څېر دول د ژبې د آسانۍ او د ووسره هېنده ده .

ب – هغه دوه ي : د لږ لرې اشارې د پاره استعمالېږي .

ج – هغه دوه ي : د لرې اشارې د پاره استعمالېږي .

د – هوغه دوه ي : د ډېر لرې اشارې د پاره استعمالېږي .

## دمقدار اشاره :

الف – وغومره : د نږدے اشارے د پاره استعمالیږی د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځینو ځایو کښے ( دومره ) لیا ( دونه ) شوے .

ب – هغومره : د لرے اشارے د پاره استعمالیږی د استعمال د کثرت او د تلفظ د سهولت له لامله په ځینو ځایو کښے ( هومره ) شوے .

ج – اغومره : د لرے اشارے د پاره استعمالیږی .

د – هوغومره : د پرے لرے اشارے د پاره استعمالیږی .

✣

# مبهمات

مبهمات : هغه خبرے دی چه یو سړی لیا یو شی ښئی اما جوته وی نه وی.
مبهمات درے دی : ( مجرد اسم ، استفهامیه کلمات ، موصول اسم ) .

**مجرد اسم** — خپل ، آو خپسله ، آو په خپله دهٔ دی مثلاً : خپله لیکلای یعنے بل چا لیکلای نهٔ دهٔ ، خپل کور رسے دهٔ دی یعنے د ده کور دهٔ دی د بل چا نهٔ دهٔ دی ، په خپسله د هیلے یعنے د دهٔ د هیلے بل چا د نهٔ د هیلے .

د غو کلماتو سره کله کله شخصیه ضمیرونه هم یو ځای کیږی : ځهٔ خپله ، لیا ځهٔ په خپسله ، ته خپله ، لیا ته په خپله ، هغه خپله ، لیا هغه په خپسله ، مونږ خپله لیا مونږ په خپله ، تاسے خپله ، لیا تاسے په خپله ، هغوی خپله ، لیا هغوی په خپسله .

**استفهامیه کلمات** — څوک ، چا ، څهٔ ، کوم ، کومه ، کومے ، څو ، څومره ، کله ، چیرته ، چیرے ، ولے ، څهٔ دپاره ، لیا څهٔ له ، څنګه دی .

**چا ، څوک** : دوی د عقولو پښتنے د پاره دی .

**چا** : په لاندینو حالاتو کښے استعمالیږی :

۱ ــ چه مستفهم عنه مضاف الیه واقع وی لکه : دچا کور .

۲ ــ چه مستفهم عنه مفعول ( پرته دمفعول به ) واقع شی مثلاً : چاته ، په چا ، له چا ، چا و پاره ، چا سره .

۳ ــ چه مستفهم عنه سره آر، وو نکی توری آو کلمات ، راشی لکه : چا څخه ، چا څخه ، چاه نه ، چا بانده ، پر چا ، چا پورے ، چا غونده ، چا څخه ، چا په شان ، چا پشان ، چا په راز ، چا په دول ، چا په دود ، تر چا .

۴ ــ چه مستفهم عنه د متعدی فعل د ماضی فاعل واقع شی مثلاً : چا و واهه ، چا وربرا وه .

۵ ــ چه مستفهم عنه د مخصوص لازمی (ل) والا مصادرو د ماضی فعل فاعل واقع شی : چا وژرل ، چا وخندل ، چا و وانګل .

۶ ــ هر کله چه مستفهم عنه مستثنا واقع شی : بے چا ، پرته له چا .

څوک : پرته د پاسنو حالاتو نور په درستو احوالو کښے استعمالیږی .

څه : د غیر ذوی العقولو د پښتنے د پاره استعمالیږی : څه وه ، څه نے وویل :

که د ذوی العقولو د پښتنې د پاره استعمال شي مدعا تحقیر او استخفاف وي په دغې عبارے سره نے د ذوی العقولو د دلے څخه باسي . مثلاً هغه څه سړی دی .

**کوم** : د سوال په موقع کښے د هغه سابولیا اشیانو د پښتنې د پاره استعمالیږي چه مذکر وي مثلاً : کوم سړی دی ، کوم کتاب ، کله کله د (یو) کلمه هم ور سره یوځای کیږي : کوم یو سړی ، کوم یو نفر . کوم یو ځینې .

**کومه** : د هغه مفرد سابولیا اشیانو د پښتنې د پاره استعمالیږي چه مؤنث وي : کومه ښځه ، کومه ونه .

**کومے** : د هغے جمع سابولیا اشیانو د پښتنے د پاره استعمالیږي چه مؤنث وي : کومے ښځے ، کومے ونے .

**څو** : د کمیت (شمېره او عدد) د پښتنے د پاره ده ، څو روپۍ ؟

**څومره** : د مقدار د پښتنے د پاره ده : څومره غنم وي ، د پاره د پښتنے که د عدد راشي د پښتنے څخه مراد د پر والې ده . په ځینو ځایو کښے د استعمال د کثرت له لامله لیا هر څه چه وي (څونه) شوه ده .

کله : د وخت د پوښتنې دپاره استعمالېږي : کله څې .

څېرنه : د ځای د پوښتنې دپاره استعمالېږي : څېرته وسې .

څېرې : د غه هم د ځای د پوښتنې دپاره استعمالېږي .

ولې : د سبب د پوښتنې دپاره استعمالېږي .

څنګه : د حال او کیفیت د پوښتنې دپاره استعمالېږي .

څله : د غه هم د سبب د پوښتنې دپاره استعمالېږي .

د استفهامیو کلماتو د تلفظ او د بسته :

د استفهامیو کلماتو د جملې څخه پو اڅې ( کوم ، کومه ، کومې ) هر کله چې مستفهم عنه بې دیوه نه د پروی د تلفظ په وخت کښې په لاندینو ځایونو کښې لمړی او دریم په ورسته کښې (و) او دوهم په وروسته پښې (یې) مینده کوی .

۱ــ هر کله چې مستفهم عنه مضاف الیه واقع شي : د کوم ښځو ، د کومې ښځې ، د کوم سړي .

۲ــ هر کله چې مستفهم عنه مفعول ( پرته د مفعول به ) واقع شي : کوم ښځو ته ، کومې ښځې ته ، کوم سړي ته . . . . . الخ .

۳- هر کله چه مستفهم عنه سره آمر وو نو تورې آو کلمات راشي : کوم سړی وتښته ،
کومې آسپې ځغلې ، کوم مېږه ولاندې ، کومې کوڼې باندې ... الخ .

۴- هر کله چه مستفهم عنه د متعدي فعل د ماضي صيغې فاعل واقع شي : کوم سړي وپرې کړ ،
کومې آسپې وه غوړځاوه ، کوم ښځو وه وا به ..... الخ .

۵- هر کله چه مستفهم عنه د مخصوص لازمي (ل) والا مصادرو د ماضي صيغې فاعل واقع
شي : کوم ماشوم نو وژړل ، کومې جلۍ وخندل ، کوم ښځو وخندل .

۶- هر کله چه مستفهم عنه مستثنا واقع شي : بې کوم ماشوم نو ، بې کومې جلۍ .
پرته له کوم ښځو .

**موصول اسم** — د بعضې اشارې اسمونو ځنې عبارت دي چه مشار اليه نې
مبهم وي د دغه د پاره چه د مشار اليه د دغه اشارتو ابهام لرې کړ شي تر مشار اليه
وروسته يوه خبريه جمله راوړل کېږي چه دغې ته (صله) وائي د دغه د پاره چه مشار اليه
د صلې سره ربط مينده کي د مشار اليه آو صلې تر منځ د (چه) لفظ استعمالېږي
چه دغه ته (د صلې ادات) وائي . مثلاً په دغې جملې کښې : بعضه کتاب چه تاته

ے ورکړ: (هغه) موصول اسم، (کتاب) مشار اليه (چه) د صلے توره ى (تا ته ے ورکړ) صله ده.

لنډه دے دا چه د صلے حرف چه په پښتو کښے (چه) ده ى د يوه عبارت د دوو برخو د ربط د پاره راځى.



# څلورم څپرکی

## ځېړنده

ځېړنده (مصدر) هغه کلمه ده چه بې له ملاحظې د ذات او زمان پر یوه شي دلالت وکي، مصدر د درستو فعلو ځېړنده ده په پښتو کښې نښتې که څه هم یو اسې (ل) ده ې خو تر دغه لا جوته درې نښې لري: (ل، ول، بدل)

مګر د اشتقاق تو په ملاحظه ټول مصادر په څلور برخو بېلېږي.

۱ــ هغه چه په دروسته کښې ئې یو اسې (ل) وي: لکه: وهل، تل، ژړل،

د غه د ول مصادر تل معلوم وي او پر دوو برخو بېلېږي.

۱ــ متعدي: لکه: وهل، کوښل، ځبل.

ب ــ لازمي: چه د غه هم په څپل کور کښې دوه ډوله وي:

۱ــ مخصوص: چه هغه د دغو څو مصادرو (ژړل، خندل، ودانګل، نجل، . . . . . . . . آونور،) څخه عبارت ده ی.

۲ــ غیرمخصوص : چه هغه د دغو پاسنو مصادرو څخه پرته نور ټول دي لکه : تلل ، کېناستل ، ختل .

۲ــ هغه چه په وروستنه کښي ئې (ول) وي لکه : ربړول ، سپړول ، دغه د ول مصادر ټول معلوم متعدي وي .

۳ــ هغه چه په وروستنه کښي ئې (ېدل) وي لکه : برېښېدل ، سپېنېدل ، دغه د ول مصادر پر دوو برخو بېلېږي :

اــ لازمي ، لکه : برېښېدل ، ښوه ېدل .

بــ مجهول متعدي ، لکه : سپېنېدل ، جوړېدل .

دغه د ول مصادر یا لازم وي یا مجهول متعدي ، (چه ښېلول ئې په معنې پورې اړه لري ) په دغه د ول مصادرو کښي معلوم متعدي نشته .

۴ــ هغه چه په وروستنه کښي ئې (کول) وي : دغه د ول مصادر ټول معلوم متعدي وي او د فعل د مادې وروستنۍ توري ئې (الف) لیـ

| | |
|---|---|
| هغه دے وهلی وای | هغه دے وهلی نه وای |
| هغۓ وهلی وای | هغۓ وهلی نه وای |
| هغه مو وهلی وای | هغه مو وهلی نه وای |
| هغه مو وهلی وای | هغه مو وهلی نه وای |
| هغۓ وهلی وای | هغۓ وهلی نه وای |

## مؤنث

| مثبت | منفي |
|---|---|
| هغه مے وهلے وای | هغه مے وهلے نه وای |
| هغه دے وهلے وای | هغه دے وهلے نه وای |
| هغۓ وهلے وای | هغۓ وهلے نه وای |
| هغه مو وهلے وای | هغه مو وهلے نه وای |
| هغه مو وهلے وای | هغه مو وهلے نه وای |
| هغۓ وهلے وای | هغۓ وهلے نه وای |

په پاسنو مثالونو کښې مفعول غائب مفرد ذکر شوی دی که مفعول بل څوک وي هغه ضمير را اوړل کېږي چه د هماغه مفعول قائم مقام وي :

| مذکر | | مؤنث | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| ځه ئې وهلی وای | موږ ئې وهلي وای | ځه ئې وهلې وای | موږ ئې وهلي وای |
| ته ئې وهلی وای | تاسو ئې وهلي وای | ته ئې وهلې وای | تاسو ئې وهلي وای |
| هغه ئې وهلی وای | هغوی ئې وهلي وای | هغه ئې وهلې وای | هغوی ئې وهلي وای |

۲ـ د (ول) والا مصادرو څخه :

الف : د بغه د ول (ول) والا مصادرو څخه (چه د فعل یا د هغې صفت یا د مفعول اسم مخفف یا منسوب اسم وي) د تمنائي ماضي اشتقاق د غه سې کېږي چه لمړی د صیغې په سر کښې د مفعول د تعین د پاره (شخصي ضمیرونه) ، اوپسې د فاعل د تعین د پاره (مرکب فعلي ضمیرونه) ، ورپسې د مصدر نه د مصدریت نښه لرې کېږي آو پاتې په وروسته کښې که مفعول مذکر مفرد وي (کړه ی) آو که

مونث مفرد وي (کړے) آو که جمع مذکر وي يا مونث (کړي) وروسته
(واي) راوسل کيږي، په نفي کښے د (واي) نه مخکښے د نفي ادات (نه) هم
راوسل کيږي آو که مفعول مونث وي د فعل د ماده په وروسته کښے د مفرد د پاره
(ه) آو د جمع د پاره مجهوله (يے) چه د پښتو د تانيث نښے دي راوسله کيږي :

## مذکر

| مثبت | منفي |
|---|---|
| هغه مے غوزار کړه ي واي | هغه مے غوزار کړه ي نه واي |
| هغه دے غوزار کړه ي واي | هغه دے غوزار کړه ي نه واي |
| هغه ئے غوزار کړه ي واي | هغه ئے غوزار کړه ي نه واي |
| هغه مو غوزار کړه ي واي | هغه مو غوزار کړه ي نه واي |
| هغه مو غوزار کړه ي واي | هغه مو غوزار کړه ي نه واي |
| هغه ئے غوزار کړه ي واي | هغه ئے غوزار کړه ي تواي |

## مؤنث

| مثبت | منفي |
|---|---|
| هغه مے غوزاره کړے وای | هغه مے غوزاره کړے نه وای |
| هغه دے غوزاره کړے وای | هغه دے غوزاره کړے نه وای |
| هغے ئُے غوزاره کړے وای | هغے ئے غوزاره کړے نه وای |
| هغه مو غوزاره کړے وای | هغه مو غوزاره کړے نه وای |
| هغه مو غوزاره کړے وای | هغه مو غوزاره کړے نه وای |
| هغے ئُے غوزاره کړے وای | هغے ئے غوزاره کړے نه وای |

په پاسنو مثالونو کښے مفعول غائب مفرد ذکر شوه ی که مفعول بل څوک وی هغه ضمیر راوسل کیږی چه دهاغه مفعول قائمُقام وی :

## مذکر

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ځه دے غوزار کړه ی وای | مږ دے غوزار کړی وای |

| | |
|---|---|
| تہ مے غوزارکڑہ ی وای | تاسو ے غوزارکڑی وای |
| ہغہ مے غوزارکڑہ ی وای | ہغوی مے غوزارکڑی وای |

مؤنث

| مفرد | جمع |
|---|---|
| زہ دے غوزارہ کڑے وای | مونږ دے غوزارے کڑی وای |
| تہ مے غوزارہ کڑے وای | تاسو ے غوزارے کڑی وای |
| ہغہ ے غوزارہ کڑے وای | ہغوی مے غوزارے کڑی وای |

ب : دنورو (ول) والامصادرو تخذ یعنے دبنو تخذ چہ دفعل مادہ ئے صفت لیا بغہ نورنہ وی دتمنائی ماضی اشتقاق دنہ سے کېږی لکہ چہ د (ل) والامصادرو د (ج) پہ مادے کښے ئے بیان وشو :

مذکر

| مثبت | منفی |
|---|---|
| ہغہ مے رہبر ولہ ی وای | ہغہ مے رہبر ولہ ی نہ وای |

| | |
|---|---|
| هغه دے ربې ولې وای | هغه دے ربې ولې نه وای |
| هغه ئے ربې ولې وای | هغه ئے ربې ولې نه وای |
| هغه مو ربې ولې وای | هغه مو ربې ولې نه وای |
| هغه مو ربې ولې وای | هغه مو ربې ولې نه وای |
| هغه ئے ربې ولې وای | هغه ئے ربې ولې نه وای |

## مؤنث

| مثبت | منفی |
|---|---|
| هغه مے ربې ولے وای | هغه مے ربې ولے نه وای |
| هغه دے ربې ولے وای | هغه دے ربې ولے نه وای |
| هغه ئے ربې ولے وای | هغه ئے ربې ولے نه وای |
| هغه مو ربې ولے وای | هغه مو ربې ولے نه وای |
| هغه مو ربې ولے وای | هغه مو ربې ولے نه وای |
| هغه ئے ربې ولے وای | هغه ئے ربې ولے نه وای |

په پاسنو مثالو کښے مفعول غائب مفرد مذکر شوی دی که مفعول بل څوک وی نو ضمیر

راوسال کیږی چه د هاغه مفعول قائمقام وی :

## مذکر

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| مونږ دے ربړولی وای | زه دے ربړولی وای |
| تاسو مے ربړولی وای | تۀ مے ربړولی وای |
| هغوی مے ربړولی وای | هغه مے ربړولی وای |

## مؤنث

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| مونږ دے ربړولی وای | زه دے ربړولے وای |
| تاسو مے ربړولی وای | تۀ مے ربړولے وای |
| هغوی مے ربړولی وای | هغه مے ربړولے وای |

۳— د (بدل) والا مصادرو څخه :

الف: د ښه‌دول (ډل) والا مصادر وځخه (چه د فعل ماده ئې صفت یا د مفعول اسم مخفف یا منسوب اسم وي) د تمنائي ماضي اشتقاق د غه سې کېږي چه لره ئې د صیغې په سر کښې د فاعل د تعین د پاره (شخصیه ضمیرونه) راوړل کېږي، پسې د مصدر نه د مصدریت نښه لرې کېږي آو د پاتې په وروستۀ کښې د مذکر مفرد د پاره (شوه‌ی) آو د مؤنث مفرد د پاره (شوې) آو د جمع د پاره که مذکر وي یا مؤنث (شوي)، ورپسې (وای) راوړل کېږي، په نفي کښې د (وای) نه مخکښې د نفي ادات (نه) هم راوړل کېږي، آو په مؤنث کښې د فعل د مادې په وروستۀ کښې د مفرد د پاره (ه) آو د جمع د پاره مجهوله (یې) چه د پښتو د تانیث نښې دي هم زیاتېږي؛

## مذکر

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| ځه غوزار شوه‌ی وای | ځه غوزار شوه‌ی نه وای |
| ته غوزار شوه‌ی وای | ته غوزار شوه‌ی نه وای |
| هغه غوزار شوه‌ی وای | هغه غوزار شوه‌ی نه وای |

| | |
|---|---|
| مږ غوزار شوی وای | مږ غوزار شوی نه وای |
| تاسو غوزار شوی وای | تاسو غوزار شوی نه وای |
| هغوی غوزار شوی وای | هغوی غوزار شوی نه وای |

## مؤنث

| مثبت | منفي |
|---|---|
| زه غوزاره شوے وای | زه غوزاره شوے نه وای |
| ته غوزاره شوے وای | ته غوزاره شوے نه وای |
| هغه غوزاره شوے وای | هغه غوزاره شوے نه وای |
| مږ غوزارے شوی وای | مږ غوزارے شوی نه وای |
| تاسو غوزارے شوی وای | تاسو غوزارے شوی نه وای |
| هغوی غوزارے شوی وای | هغوی غوزارے شوی نه وای |

ب : دوړو (ېدل) والا مصادرو څخه یعنے هغه چه د فعل ماده ئے صفت یا هغه نور نه وی د تمنائی ماضی اشتقاق دغه سے کیږی لکه چه د (ل) والا مصادرو د (ب)

په ماده کښې ئے بیان وشو :

| مذکر | | مؤنث | |
|---|---|---|---|
| مثبت | منفی | مثبت | منفی |
| ځه ربه پډلی وای | ځه ربه پډلی نه وای | ځه ربه پډلے وای | ځه ربه پډلے نه وای |
| ته ربه پډلی وای | ته ربه پډلی نه وای | ته ربه پډلے وای | ته ربه پډلے نه وای |
| هغه ربه پډلی وای | هغه ربه پډلی نه وای | هغه ربه پډلے وای | هغه ربه پډلے نه وای |
| مونږ ربه پډلی وای | مونږ ربه پډلی نه وای | مونږ ربه پډلی وای | مونږ ربه پډلی نه وای |
| تاسو ربه پډلی وای | تاسو ربه پډلی نه وای | تاسو ربه پډلی وای | تاسو ربه پډلی نه وای |
| هغوی ربه پډلی وای | هغوی ربه پډلی نه وای | هغوی ربه پډلی وای | هغوی ربه پډلی نه وای |

۴ ــ د (کول) والا مصادر وشحه :

د (کول) والا مصادر وشحه د تمنائی ماضی اشتقاق دغه سے

کیږی لکه چه د (ول) والا مصادر ود

(الف) په ماده کښې ئے بیان وشو :

# مذکر

| مثبت | منفی |
| --- | --- |
| هغه مے پرے کړه ی وای | هغه مے پرے کړه ی نه وای |
| هغه دے پرے کړه ی وای | هغه دے پرے کړه ی نه وای |
| هغه ئے پرے کړه ی وای | هغه ئے پرے کړه ی نه وای |
| هغه مو پرے کړه ی وای | هغه مو پرے کړه ی نه وای |
| هغه مو پرے کړه ی وای | هغه مو پرے کړه ی نه وای |
| هغه ئے پرے کړه ی وای | هغه ئے پرے کړه ی نه وای |

# مؤنث

| مثبت | منفی |
| --- | --- |
| هغه مے پرے کړے وای | هغه مے پرے کړے نه وای |
| هغه دے پرے کړے وای | هغه دے پرے کړے نه وای |
| هغه ئے پرے کړے وای | هغه ئے پرے کړے نه وای |

| | |
|---|---|
| هغه مو پړے کړے وای | هغه مو پړے کړے نه وای |
| هغه مو پړے کړے وای | هغه مو پړے کړے نه وای |
| هغه ئے پړے کړے وای | هغه ئے پړے کړے نه وای |

په پاسنو مثالونو کښے مفعول غائب مفرد ذکر شوی که مفعول بل څوک وی هغه ضمیر راوسال کېږی چه د هغه مفعول قائمقام وی :

## مذکر

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ځه دے پړے کړه ی وای | مونږ دے پړے کړی وای |
| ته مے پړے کړه ی وای | تاسو مے پړے کړی وای |
| هغه مے پړے کړه ی وای | هغوی مے پړے کړی وای |

## مؤنث

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ځه دے پړے کړے وای | مونږ دے پړے کړی وای |

| | |
|---|---|
| تہ مے پرے کړے وای | تاسو مے پرے کړی وای |
| هغہ مے پرے کړے وای | هغوی مے پرے کړی وای |

## ۵ ـ د (کېدل) والا مصادرو څخہ :

د (کېدل) والا مصادرو څخہ د تمنائی ماضی اشتقاق دغہ سے کېږی لکہ چہ د (ېل) والا مصادرو د (الف) پہ ماده کښے لے بیان وشو :

## مذکر

| مثبت | منفی |
|---|---|
| زۀ هوسا شوه ی وای | زۀ هوسا شوه ی نہ وای |
| تہ هوسا شوه ی وای | تہ هوسا شوه ی نہ وای |
| هغہ هوسا شوه ی وای | هغہ هوسا شوه ی نہ وای |
| مونږ هوسا شوی وای | مونږ هوسا شو ی نہ وای |
| تاسو هوسا شوی وای | تاسو هوسا شوی نہ وای |
| هغوی هوسا شوی وای | هغوی هوسا شوی نہ وای |

## مؤنث

| مثبت | منفی |
| --- | --- |
| ځه هوسا شوے وای | ځه هوسا شوے نه وای |
| ته هوسا شوے وای | ته هوسا شوے نه وای |
| هغه هوسا شوے وای | هغه هوسا شوے نه وای |
| مونږ هوسا شوی وای | مونږ هوسا شوی نه وای |
| تاسو هوسا شوی وای | تاسو هوسا شوی نه وای |
| هغوی هوسا شوی وای | هغوی هوسا شوی نه وای |

## د حال فعل

د حال فعل هغه دی چه دیوے چارے وقوع یا نه وقوع په هوسنی زمانے کښے ښئی ، اشتقاق ئے د مصادرو په اعتبار یه لاندینی ډول سره کیږی :

۱ـ د (ل) والا مصادرو څخه:

الف: د مخصوص لازمي (ل) والا مصادرو څخه د مصدريت نښه لرې کېږي په اثبات کښې د فعل د مادې نه وروسته (بسيط فعلي ضميرونه) راوړل کېږي او د کلمې د لمړي توري نه وروسته (الف) هم زياتېږي، په نفي کښې د کلمې په سر کښې د نفي ادات (نه) هم راوړل کېږي:

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| ژاړم | نه ژاړم |
| ژاړې | نه ژاړې |
| ژاړي | نه ژاړي |
| ژاړو | نه ژاړو |
| ژاړئ | نه ژاړئ |
| ژاړي | نه ژاړي |

ب: پرته له پاسنو لازمي (ل) والا مصادرو د نورو لازمي لام والا مصادرو

: د حال او فعل اشتقاق د غیر مستعمل مصدر څخه نے کېږی چه دوه غو مصادر و غیر مستعمل مصادر په لاندېنی جدول کښے د مثال په ډول ذکر شوی :

| مستعمل | غیر مستعمل |
| --- | --- |
| تلل | ځل |
| کېناستل | کېنل |
| څملاستل | څملل |
| پرېوتل | پرېوځل |
| ختل | خېژل |
| ننوتل | ننوځل |

نو دوه غو غیر مستعمل مصادر و څخه د حال و فعل اشتقاق د غه سے کېږی چه د مصدر څخه د مصدریت نښه ( ل ) لرے کېږی د پاتے په وروستہ کښے ( بسیط فعلی ضمیر ( م ) راوړل کېږی ، په نفی کښے د فعل په سر کښے د نفی ادات ( نه ) هم راوړل کېږی :

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| حُـم | نه حُم |
| ـُـے | نه ـُـے |
| حُی | نه حُی |
| حُو | نه حُو |
| حُی | نه حُی |
| حُی | نه حُی |

ج ۰ د متعدی (ل) والا مصادرو نه هم د مصدریت نښه لرے کېږی آو دپاسے پهٔ وروستهٔ کښې د فاعل د تعین دپاره (بسیط فعلی ضمیرونه) آو پسے د مفعول د تعین دپاره (مرکب فعلی ضمیرونه) راورسرل کېږی ، پهٔ نفی کښې د ټولو نه مخکښے د نفی اداة (نه) ، پسے (مرکب فعلی ضمیرونه) ، ورپسے پاتے صیغه راورسرل کېږی:

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| وهم ـئے | نه ـئے وهم |

| | |
|---|---|
| وبه يې | نه يې وبه |
| وبې يې | نه يې وبې |
| وبو يې | نه يې وبو |
| وبې يې | نه يې وبې |
| وبې يې | نه يې وبې |

په پاسنو مثالو کښې مفعول غائب مفرد ذکر شوی که مفعول بل څوک وي نو ضمير را اوړل کېږي چه د هغه مفعول قائمقام وي:

| مفـرد | جمع |
|---|---|
| وبم دې | وبم مو |
| وبه مې | وبه مو |
| وبم يې | وبم يې |

۲ — د (ول) والا مصادر وځمځ:

د دغو (ول) والا مصادرو ځمځ د حال د صيغې اشتقاق د غه سې کېږي لکه چه

د (ل) والامصادرو د (ج) په ماده کښے لۓ ذکر وشو :

| منفي | مثبت |
| --- | --- |
| نه ئے غوزاروم | غوزاروم ئے |
| نه ئے غوزاروے | غوزاروے ئے |
| نه ئے غوزاروی | غوزاروی ئے |
| نه ئے غوزارو و | غوزارو و ئے |
| نه ئے غوزاروی | غوزاروی ئے |
| نه ئے غوزاروی | غوزاروی ئے |

په پاسنو مثالو کښے مفعول غائب مفرد ذکر شوے دے که مفعول بل څوک وی نو ضمیر راوسال کیږی چه د هغه مفعول قائمقام وی :

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| غوزاروے مو | غوزاروے مے |
| غوزاروم مو | غوزاروم دے |

| | |
|---|---|
| غوزاروم ــے | غوزاروم ــئے |

۳ــ د (پډل) والامصادروڅخه:

د دواړو دولو (پډل) والامصادروڅخه دمصدریت نښه لرے کیږي دپاتے په وروستے کښے (پېږ)، وروسے (بسیط فعلي ضمیرونه) راوسال کیږي، په نفي کښے دصیغے په سرکښے دنفي ادات (نه) هم راوسال کیږي:

| مثبت | منفي |
|---|---|
| ورپېږم | نه ورپېږم |
| ورپېږے | نه ورپېږے |
| ورپېږي | نه ورپېږي |
| ورپېږو | نه ورپېږو |
| ورپېږئ | نه ورپېږئ |
| ورپېږي | نه ورپېږي |

۴ــ د (کول) والامصادروڅخه:

د (کول) والا مصادرو څخه د مصدر نښه لرے کیږي آو د پاتے پہ و روستہ کښے دفاعل دتعین د پاره (بسیط فعلي ضمیرونه) اچیسے دمفعول دتعین د پار ه (مرکب فعلي ضمیرونه) راوړل کیږي، په نفي کښے دکلمے په سر کښے د نفي ادات نه) اچیسے (مرکب فعلي ضمیرونه) ورپسے ئے پاتے صیغه راوړل کیږي:

| منفي | مثبت |
| --- | --- |
| نه ئے پرے کوم | پرے کوم ئے |
| نه ئے پرے کوے | پرے کوے ئے |
| نه ئے پرے کوي | پرے کوي ئے |
| نه ئے پرے کوو | پرے کوو ئے |
| نه ئے پرے کوي | پرے کوي ئے |
| نه ئے پرے کوي | پرے کوي ئے |

په پاسنو مثالو کښے مفعول غائب مفرد ذکر شوه دی که مفعول بل څوک وي بیا نه ضمیر راوړل کیږي چه د هاغه مفعول قائمقام وي:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| پرے کوے مے | پرے کوے مو |
| پرے کوم دے | پرے کوم مو |
| پرے کوے ئے | پرے کوم ئے |

۵ـ د (کېدل) والا مصادرو څخه:

د (کېدل) والا مصادرو څخه د مصدریت نښه لرے کېږی آو د پاتے په وروسته کښے (کېږ) ، پسے (بسیط فعلی ضمیرونه) راوړل کېږی. په نفی کښے د کلمے په سر کښے د نفی ادات (نه) هم زیاتېږی:

| مثبت | منفی |
| --- | --- |
| هوسا کېږم | نه هوسا کېږم |
| هوسا کېږے | نه هوسا کېږے |
| هوسا کېږی | نه هوسا کېږی |
| هوسا کېږو | نه هوسا کېږو |

| | |
|---|---|
| هوسا کېږي | نه هوسا کېږي |
| هوسا کېږي | نه هوسا کېږي |

# اجباري فعل

اجباري فعل هغه فعل ده ى چه ديوے چارے کول ليانه کول دا ړتيا ظنيے وي يعني بے لکولو ليانه کولوے بل لاره آو چاره نه وي اشتقاق ئے د غه سے کېږي چه فقط د حال په صيغے کښے په اثبات کښے د (لبيط فعلي ضمير ونو) وروستے آو په نفي کښے د نفي د ادات (نه) ځخه وروسته د (به) لفظ راوړل کېږي :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| ژاړم به | نه به ژاړم |
| کښنم به | نه به کښنم |
| ويم به ئے | نه به ئے ويم |
| دريږم به | نه به دريږم |

| | |
|---|---|
| ربړ وم به ئې | نه به ئې ربړ وم |
| پرې کوم به ئې | نه به ئې پرې کوم |
| هوسا کېږم به | نه به هوسا کېږم |

## التزامي فعل

التزامي فعل هغه فعل دی چه دیوې چارې کول د متکلم پر مطلوب دلالت وکی اشتقاق ئې د مصادرو په اعتبار په لاندېنی ډول سره کېږی :

۱ــ د (ل) والا مصادرو څخه :

الف : د مخصوص لازمي (ل) والا مصادرو څخه د التزامي فعل اشتقاق دغه ډول کېږی چه دحال دفعل په سرکښې د (و) توری زیاتېږی :

| | مثبت | منفي |
|---|---|---|
| متکلم : | وژاړم | ونه ژاړم |
| مخاطب : | وخاندې | ونه خاندې |
| غائب : | ولامبی | ونه لامبی |

ب : د نورو لازمي (ل) والا مصادرو څخه د التزامي فعل اشتقاق د غسې کېږي چه د ځينو مصادرو د حال د فعل په سر کښې پاسنی اصول سره د (و) توره ي زياتېږي :

| | مثبت | منفي |
|---|---|---|
| متکلم : | وخېژم | و نه خېژم |
| مخاطب : | والوزې | وا نه لوزې |
| غائب : | وُخغلي | و نه خغلي |

او د ځينو مصادرو څخه التزامي فعل د غسې جوړېږي چه د حال د فعل د لمړي توري او که لمړه ي توره ي ساکن وي د دوه يم توري حرکه په شدت سره لوسته کېږي ، اما په نفي کښې د نفي ادات (نه) د فعل د ماده په منځ کښې نښو ځي :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| کے نم | کے نه نم |
| ځلے | ځه نلے |
| ننو ځي | ننه نه ووځي |

ج : د متعدي (ل) والا مصادرو څخه د التـــزامي فعل اشتقاق دغه دول کېږي چه د حال د صيغې په سر کښې د (و) توره ی زياتېږي خو دومره فرق لري چه (مرکب فعلي ضميرونه) چه د حال د صيغې په اثبات کښې د صيغې په وروستـــه کښې آو په نفي کښې د نفي ادات (نه) څخه وروستـــه راوړل کېدل، د لته د (و) توري نه وروستـــه راوړل کېږي :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| وهلے وهم | وهلے نه وهم |
| وهلے وهے | وهلے نه وهے |
| وهلے وهی | وهلے نه وهی |
| وهلے وهو | وهلے نه وهو |
| وهلے وهئ | وهلے نه وهئ |
| وهلے وهی | وهلے نه وهی |

۲ — د (ول) والا مصادرو څخه :

الف: دہغہ د ول (ول) والا مصادر وتحنہ (چہ دفعل مادہ ئے صفت لیا د مفعول اسم مخفف یا منسوب اسم وی) د التزامی فعل اشتقاق دغہ سے کیبزی چہ د مصدریت نبہ ئے لرے کیبزی آو دپاتے پہ وروستہ کښے دمفعول دتعین دپارہ (مرکب فعلی ضمیرونہ)، پسے د (ک) تورہ ی ورپسے دفاعل دتعین دپارہ (بسیط فعلی ضمیرونہ) راوړل کیبزی پہ نقی کښے، (ک) د توری نہ مخکښے دنفی ادات (نہ) ہم راوړل کیبزی کہ مفعول مؤنث وی دفعل دمادے پہ وروستہ کښے دمفرد دپارہ (ہ) آو دجمع دپارہ مجہولہ (یے) ہم راوړلے کیبزی:

| مذکر | | مؤنث | |
|---|---|---|---|
| مثبت | منفي | مثبت | منفي |
| سپین ئے کم | سپین ئے نہ کم | سپینہ ئے کم | سپینہ ئے نہ کم |
| سپین ئے کے | سپین ئے نہ کے | سپینہ ئے کے | سپینہ ئے نہ کے |
| سپین ئے کی | سپین ئے نہ کی | سپینہ ئے کی | سپینہ ئے نہ کی |
| سپین ئے کو | سپین ئے نہ کو | سپینہ ئے کو | سپینہ ئے نہ کو |

سپین ئے کی    سپین ئے نہ کی    سپینہ ئے کی    سپینہ ئے نہ کی

سپین ئے کی    سپین ئے نہ کی    سپینہ ئے کی    سپینہ ئے نہ کی

په پاسنو مثالو کښے مفعول غائب مفرد ذکر شوی دی که مفعول بل څوک وی ہغه ضمیر را وسرال کیږی چه د ہماغه مفعول قائمقام وی :

| مذکر | | مؤنث | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| سپین مے کے | سپین مو کے | سپینه مے کے | سپینے مو کے |
| سپین دے کم | سپین مو کم | سپینه دے کم | سپینے مو کم |
| سپین ئے کم | سپین ئے کم | سپینه ئے کم | سپینے ئے کم |

ب : دنورو ( ول ) والا مصادرو څخه ( یعنے ہغه چه د فعل ماده ئے صفت یا ہغه نور نه وی ) د التزامی فعل اشتقاق ہم دغه سے کیږی لکه چه د ( ل ) والا مصادرو د ( ج ) په ماده کښے ئے بیان وشو :

| منفي | مثبت |
|---|---|
| وړلے نه ز بېر وم | وړلے زبېر وم |
| وړلے نه زبېر وے | وړلے زبېر وے |
| وړلے نه زبېر وی | وړلے زبېر وی |
| وړلے نه زبېر وو | وړلے زبېر وو |
| وړلے نه زبېر وی | وړلے زبېر وی |
| وړلے نه زبېر وی | وړلے زبېر وی |

په پاسنو مثالونکښے مفعول غائب مفرد ذکر شوی که مفعول بل څوک وی بیا ضمیر راوسل کیږی چه د جماعة مفعول قائمقام وی :

| جمع | مفرد |
|---|---|
| وموږ زبېر وے | ومے زبېر وے |
| وموږ زبېر وم | وډے زبېر وم |
| وړلے زبېر وم | وړلے زبېر وم |

۳ــ د (ېدل) والا مصادر وځځه:

الف: د بنه د ول (ېدل) والا مصادر وځځه (چه د فعل ماده ئې صفت یا د مفعول اسم مخفف یا منسوب اسم وي) د التزامي فعل اشتقاق د غه سې کېږي چه د مصدریت نښه ئې کېږي د پائې په ورووستنه کښې د (ش) توره ئې اېږي (بسیط فعلي ضمیرونه) را وړل کېږي، په نفي کښې د (ش) د توري نه مخکې د نفي ادات (نه) هم را وړل کېږي آو د مؤنث د پاره د فعل د ماده په وروستنه کښې د مفرد د پاره (ه) آو د جمع د پاره مجهوله (ې) را وړل کېږي:

| مؤنث منفي | مؤنث مثبت | مذکر منفي | مذکر مثبت |
| --- | --- | --- | --- |
| غوزاره نه شم | غوزاره شم | غوزار نه شم | غوزار شم |
| غوزاره نه شې | غوزاره شې | غوزار نه شې | غوزار شې |
| غوزاره نه شي | غوزاره شي | غوزار نه شي | غوزار شي |
| غوزارې نه شو | غوزارې شو | غوزار نه شو | غوزار شو |

| | | | |
|---|---|---|---|
| غوزارشي | غوزارنه شي | غوزارے شي | غوزارے نه شي |
| غوزارشي | غوزارنه شي | غوزارے شي | غوزارے نه شي |

ب : د نورو (ړل) والا مصادرو څخه (یعنې هغه چه د فعل ماده ئې صفت لیا هغه نورنه وي) د التزامي فعل اشتقاق د غه د ول کېږي چه د حال د صیغې په سر کښې د (و) توره ئې زیاتېږي :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| ووړېږم | و نه وړېږم |
| ووړېږے | و نه وړېږے |
| ووړېږي | و نه وړېږي |
| ووړېږو | و نه وړېږو |
| ووړېږئ | و نه وړېږئ |
| ووړېږي | و نه وړېږي |

۴ — د (کول) والا مصادرو څخه :

الف : د بغه د ول ( کول ) والا مصادر وشځه (چه د فعل ماده ئے صفت لیا د مفعول اسم مخفف لیا منسوب اسم وی د التزامی فعل اشتقاق هغه د ول کیږی لکه چه د ( ول ) والا مصادر و د ( الف ) په مادے کښے ئے بیان وشو :

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| پرے ئے کم | پرے ئے نه کم |
| پرے ئے کے | پرے ئے نه کے |
| پرے ئے کی | پرے ئے نه کی |
| پرے ئے کو | پرے ئے نه کو |
| پرے ئے کئ | پرے ئے نه کئ |
| پرے ئے کی | پرے ئے نه کی |

په پاسنو مثالو کښے مفعول غائب مفرد ذکر شوه ی که مفعول بل څوک وی هغه ضمیر را وسال کیږی چه د هماغه مفعول قائمقام وی :

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| پرے مے کے | پرے مو کے |
| پرے دے کم | پرے مو کم |
| پرے ئے کم | پرے ئے کم |

ب : دبغه د ول (کول) والا مصادرو څخه (چه دفعل ماده ئے صفت بیا ښغه نور نه وی) د مصدریت نښه لرے کېږی د پاتے په وروسته کښے د (و) توری پسے د (ک) توره ی ، ورپسے (بسیط فعلی ضمیرونه) راوړل کېږی، په نفی کښے د (و) د توری نه وروسته د نفی ادات (نه) هم راوړل کېږی :

| مثبت | منفی |
| --- | --- |
| ایتتے وکم | ایتتے و نه کم |
| ایتتے وکے | ایتتے و نه کے |
| ایتتے وکی | ایتتے و نه کی |
| ایتتے وکو | ایتتے و نه کو |

| | |
|---|---|
| اتيتے وکی | اتيتے و نه کی |
| اتيتے وکی | اتيتے و نه کی |

### ۵ـ د (کېدل) والا مصادرو څخه :

الف : د هغه دول (کېدل) والا مصادرو ځخه (چه د فعل ماده ئے صفت یا د مفعول اسم مخفف یا منسوب اسم وی) د التزامی فعل اشتقاق هغه دول کېږی لکه چه د (ېدل) والا مصادرو د (الف) په ماده کښے ئے بيان وشو :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| هوسا شم | هوسا نه شم |
| هوسا شے | هوسا نه شے |
| هوسا شي | هوسا نه شي |
| هوسا شو | هوسا نه شو |
| هوسا شی | هوسا نه شی |
| هوسا شی | هوسا نه شی |

ب : د نورو (کېدل) والا مصادرو څخه (یعنې هغه چه د فعل ماده ئې صفت یا
هغه نور نه وي ) د مصدریت نښه لرې کېږي د پاتې په وروسته کښې د (و)
توري پسې د (ش) توري ورپسې (بسیط فعلي ضمیرونه) راوسل کېږي په
نفي کښې د (و) د توري نه وروسته د نفي ادات (نه) هم راوسل کېږي خو دوه
راز افعالو د متکلم او مخاطب صیغې نه استعمالېږي :

| | مثبت | منفي |
|---|---|---|
| مفرد غائب : | جرګه وشي | جرګه و نه شي |
| جمع غائب : | جرګې وشي | جرګې و نه شي |

هر کله چه د شرط ادات (که) او نور دوه غې صیغې (التزامي صیغې) په سر کښې
راوسل شي د دغه صیغه د شرطیت په ځای کښې هم استعمالېږي :

که ئې وو هم څوک ئې پښتنه هم نه کوي .

او همدغه رنګه د دغه التزامي صیغه د استفهام د پاره هم وهیله کېږي او په تګ
اولیږي سره چلېږي : وئې وهم .

## د استقبال فعل

استقبال هغه دی چه د یوې چارې وقوع یا نه وقوع په راتلونکي زمانه کښې وښئي اشتقاق ئې دغسې کیږي چه په التزامي فعل کښې د (به) ادات زیاتیږي:

۱— که د التزامي فعل لره ئي توره (و) وي دغه ادات د (و) د توري نه وروسته راځي:

| منفي | مثبت |
| --- | --- |
| وبه نه ژاړم | وبه ژاړم |
| وبه نه ځم | وبه ځم |
| وبه ئې نه وهې | وبه ئې وهې |
| وبه مې نه وهې | وبه مې وهې |
| وبه ئې نه ربړوي | وبه ئې ربړوي |
| وبه مې نه ربړوي | وبه مې ربړوي |
| وبه نه ورپېژنم | وبه ورپېژنم |

۲ــ که د التزامی فعل لره ی توره ی (و) نه وی آو د فعل ماده سره ئے معنا وره کلمه وی د استقبال ادات د هغے کلمے نه د روسته راو سل کیږی:

| منفي | مثبت |
| --- | --- |
| سپین به ئے نه کړم | سپین به ئے کړم |
| نیټ به مے نه کی | نیټ به مے کی |
| غوزار به نه شم | غوزار به شم |
| پرے به ئے نه کړم | پرے به ئے کړم |
| پرے به مے نه کی | پرے به مے کی |
| اتیتے به و نه کړم | اتیتے به و کړم |
| هوسا به نه شم | هوسا به شم |
| جرگه به و نه شی | جرگه به و شی |

۳ــ په هغه د وں (ل) والا مصادرو کښے چه په التزامی فعل کښے د صیغے لره ی توره ی (و) نه وی آو د فعل ماده سره ئے هم معنا وره کلمه نه وی د استقبال ادات

دفعل دمادے په منځ کښے نه ووځي چه په آور په و پوړے اړه لري :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| کے به ئم | کے به نه ئم |
| کے به ئے | کے به نه ئے |
| کے به ئی | کے به نه ئی |
| کے به ئو | کے به نه ئو |
| کے به ئی | کے به نه ئی |
| کے به ئی | کے به نه ئی |

## اقتداری فعل

اقتداری فعل هغه دی چه دیوے چارے کول لیا نه کول د فاعل په واک کښے دی اما فعل تنسے صادر شوی نه وی . د نه فعل هم درے زمانے ( مطلقه ماضی ، حال ، استقبال ) لري ، اشتقاق ئے د ټولو مستعملو مصادرو څخه د مصادرو

دانواعو په اعتبار په لاندینی ډول سره کیږی :

## ۱ــ ماضي صیغه :

الف : د (مخصوص لازمی (ل) والا) او (متعدی (ل) والا) مصادرو او د (ول) او (کول) والا مصادرو په وروسته کښې (ای) زیاتیږی ، پسې د فاعل دتعین دپاره (مرکب فعلی ضمیرونه)، ورپسې (شو (۱)) وروسته دمفعول دتعین دپاره که ( فعل مفعول ولری) (بسیط فعلی ضمیرونه) راوړل کیږی . په نفی (۲) کښې لمړی دنفی ادات (نه) ، پسې (مرکب فعلی ضمیرونه) ورپسې (شو) وروسته (بسیط فعلی ضمیرونه) تښے وروسته پاتے صیغه راوړله کیږی :

| منفی | مثبت |
|---|---|
| نه مے شو خندولای | خندولای مے شو |
| نه دے شو وهلای | وهلای دے شو |

(۱) ځینے پښتانه (شوای) راوړی .

(۲) ځینے پښتانه په نفی کښے ، نه سے وائی چه : (خندلای نے شو) .

| | |
|---|---|
| رابه‌رولای نه شو | نه نه شو رابه‌رولای |
| پرې کولای نه شو | نه نه شو پرې کولای |

ب : د نورو لازمي (ل) والا مصادرو او (ېدل) او (کېدل) والا مصادرو په ورووستو کښې (ای)، په پسې (شو)، او ورپسې د فاعل د تعین د پاره (بسیط فعلي ضمیرونه) راوړل کېږي، په نفي (۱) کښې د (شو) نه مخکې د نفي ادات (نه) هم راوړل کېږي :

| مثبت | منفي |
|---|---|
| کېناستلای شوم | کېناستلای نه شوم |
| درېدلای شوې | درېدلای نه شوې |
| پرېکېدلای شو | پرېکېدلای نه شو |

## ۲ــ د حال صیغه :

د ورستو مصادرو څخه د اقتداري فعل د حال صیغه د غه سې جوړېږي چه د مصدر

---

(۱) ځینې پښتانه په نفي کښې د غه سې وائي چه (نه شوم کېناستلای) .

په وروسته کښے (ای) پسے د مفعول دتعین دپاره (مرکب فعلي ضمیرونه) ورپسے (ش) وروسته (بسیط فعلي ضمیرونه) راوستل کیږی، په نفی کښے لمړی د نفی ادوات (نه) پسے (مرکب فعلي ضمیرونه)، ورپسے (ش) وروسته (بسیط فعلي ضمیرونه) اتنئے وروسته اصل صیغه راوستله کیږی:

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| خندلای شم | نه شم خندلای |
| وہلای ئے شے | نه ئے شے وہلای |
| رېږولای دے شی | نه دے شی رېږولای |
| کېناستلای شو | نه شو کېناستلای |
| درېدلای شی | نه شی درېدلای |
| پرے کولای ئے شی | نه ئے شی پرے کولای |
| ہوساکېدلای شو | نه شو ہوساکېدلای |

## ۳ ــ د استقبال صیغه :

د اقتدار ی فعل د استقبال صیغه بیدو د اقتدار ی فعل د حال د صیغې پشان ده یو اځې د استقبال ادات ( به ) په کښې زیاتیږی چه د غه ادات هم په اثبات کښې د ( ای ) ، آو په نفی کښې د نفی ادات ( نه ) څخه وروسته راو سال کیږی :

| مثبت | منفي |
| --- | --- |
| خندلای به شم | نه به شم خندلای |
| وېلای به ئې شې | نه به ئې شې وېلای |
| ربېرولای به ئې شی | نه به ئې شی ربېرولای |
| کېناستلای به شو | نه به شو کېناستلای |
| درېدلای به شی | نه به شی درېدلای |
| پرې کولای به دې شی | نه به دې شی پرې کولای |
| هوساکېدلای به شی | نه به شی هوساکېدلای |

امر هغه ده ی چه د یوه چارے پر کولو حکم کوی ، په پښتو کښے امر د اشتقاق د د ول په نسبت د وه راز ه ده ی :

۱ — معهود امر :

۲ — غیر معهود امر :

۱ — معهود امر : هغه ده ی چه د یوه معهودے چارے پر کولو حکم کوی لکه :

لاړ شه ، چه په دغه امر کښے د تګ ځای مخکښے د آمر آو مأمور په منځ کښے مذاکره آو معین شوه ی چه د وارو په خپلو ذهنو کښے پرے پوهیږی د دغه د ول امر اشتقاق د غه سے کیږی چه په مفرد حاضر امر کښے د التزامی فعل د مخاطبے صیغے روستنی توره ی په (ه) وبخښی په جمع کښے د حاضر امر آو په مفرد آو جمع کښے د غائب امر هماغه التزامی صیغے د امر پر ځای هم استعمالیږی مګر په غائب امر کښے د (دے) لفظ هم زیاتیږی ، که د التزامی فعل لمړی توره ی (و) وی د (دے) لفظ د لمړی توری نه وروسته راځی آو که لمړی توره ی (و) نه وی

آو دفعل ماده معناوره کلمه وی دبېغے نه وروسته راځی آو که ددے دووه نه یو
هم نه وی نو د (دے) لفظ دفعل دمادے په مخ کښے نه ووځی ؛

## دحاضر امر مثال

| التزامی فعل — مفرد | التزامی فعل — جمع | معهود امر — مفرد | معهود امر — جمع |
|---|---|---|---|
| وخاندے | وخاندی | وخانده | وخاندی |
| کښېنے | کښېنی | کښېنه | کښېنی |
| وخېجے | وخېجی | وخېجه | وخېجی |
| وئے وہے | وئے وہی | وئے وہه | وئے وہی |
| وئے رہروے | وئے رہروی | وئے رہروه | وئے رہروی |
| غوزارئے کے | غوزارئے کی | غوزارئے که | غوزارئے کی |
| ودرېږے | ودرېږی | ودرېږه | ودرېږی |
| غوزارشے | غوزارشی | غوزارشه | غوزارشی |

| | | | |
|---|---|---|---|
| پرے نئے کے | پرے نئے کی | پرے نئے کہ | پرے نئے کی |
| کارو کے | کارو کی | کارو کہ | کارو کی |
| ہوساشے | ہوساشی | ہوساشہ | ہوساشی |

## د غائب امر مثال

| التزامی فعل | | معہود امر | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| د خاندی | وخاندی | ودے خاندی | ودے خاندی |
| کښنی | کښنی | کےدے نی | کےدے نی |
| و ښخجی | و ښخجی | ودے ښخجی | ودے ښخجی |
| وئے وہی | وئے وہی | ودے وہی | ودے وہی |
| وئے ربړوی | وئے ربړوی | ودے ربړوی | ودے ربړوی |
| غوزارئے کی | غوزارئے کی | غوزار دے کی | غوزار دے کی |
| و درېږی | و درېږی | ودے درېږی | ودے درېږی |

| | | | |
|---|---|---|---|
| سپین شی | سپین شی | سپین دے شی | سپین دے شی |
| پرے نے کی | پرے نے کی | پرے دے کی | پرے دے کی |
| کاروکی | کاروکی | کاردے وکی | کاردے وکی |
| ہوسا شی | ہوسا شی | ہوسادے شی | ہوسادے شی |

دہغہ سرہ ی یا شی د تعین د پارہ چہ امر پرے اجرا کیبزی پہ متعدی امر کنبے ورو ستہ تر (و) چہ دکلمے پہ سر کنبے وی یا د فعل د مادے تر معنا ورے کلمے ورو ستہ او کہ دوے دو ونہ یو ہم نہ وی د فعل د مادے پہ منځ کنبے (مرکب فعلی ضمیرونہ) راوسرل کیبزی؛

| جمع | مفرد |
|---|---|
| د مو و بہ | دے و بہ |
| غوزارئے کہ | غوزارئے کہ |
| کے ئے نہ وہ | کے ئے نہ وہ |

۲ — غیر معہود امر؛ غیر معہود امر ہغہ دہ ی چہ د یو ے نا معہود دے چارے پر کولو حکم کوی لکہ؛ (خہ) چہ پہ د غہ امر کنبے د تګ ځای د آمر او مامور پہ منځ کنبے مذاکرہ او

معین شوہ ی نہ وی ، د غہ د ول امر دعتاب پہ وخت کښے د تنبیہ پہ صورت وہیل کیږی کلہ کلہ د استمرار معنی ہم پہ کښے وی اشتقاق ئے دغہ سے کیږی چہ د حال د صیغے د روستہ ی تورہ ی پہ مفرد حاضر امر کښے پہ (ه) وبخیږی د حاضر امر پہ جمع کښے آو د غائب امر پہ مفرد آو جمع کښے ہم اغہ د حال صیغہ د استمراری امر پہ ځای ہم استعمالیږی مگر د غائب صیغے پہ وروستہ کښے د (دے) لفظ ہم زیاتیږی :

| دحال فعل | | غیر معہود امر | |
| --- | --- | --- | --- |
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| خاندے | خاندی | خاندہ | خاندی |
| کښے | کښنی | کښنہ | کښنی |
| خیجے | خیجی | خیجہ | خیجی |
| وہے ئے | وہی ئے | وہہ ئے | وہی ئے |
| رہروے ئے | رہروی ئے | رہروہ ئے | رہروی ئے |

ورپېړے　　ورپېړی　　ورپېړه　　ورپېړی

غوزار پېړے　　غوزار پېړی　　غوزار پېړه　　غوزار پېړی

پرے کوے نے　　پرے کوی نے　　پرے کوه نے　　پرے کوی نے

هوسا کېږے　　هوسا کېږی　　هوسا کېږه　　هوسا کېږی

د غائب استمراری امر مثال

| د حال فعل | | غیر معهود امر | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| خاندی | خاندی | خاندی دے | خاندی دے |
| کېنی | کېنی | کېنی دے | کېنی دے |

د هغه سړی لیاشی د تعین د پاره چه امر پرے اجرا کېږی په متعدی امر کښے د امر د صیغے په وروستہ کښے (مرکب فعلی ضمیرونه) راوړل کېږی :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| وهه مے | وهه مو |

پرے کوہ ئے                    پرے کوہ ئے

# نهی

نهی ښغه ده چه دیوے چارے پر نه کولو حکم کوی . په پښتو کښے د دوامرو امرو
په مقابل کښے یو راز نهی ده ښغه هم د غه سے اشتقاقیږی چه د غیر معهود امر
په سر کښے د مخاطب د پاره (مه) آو د غائب د پاره (نه) راوسل کیږی؛ مگر
په غائب کښے د (دے) لفظ چه د امر د صیغے په وروستہ کښے راته په نهی کښے د
نهی ادات (نه) تخه وروسته راځی: مه خانده، مه کینه، مه ئے وهه، نه دے
خاندی، نه دے کښنی، نه دے وهی .

تنبیه — د مرکب فعلی ضمیرونو خای د افعالو په اشتقاق کښے پاس وښودل
شو خو هر کله چه د افعالو سره نورے کلمے گډے شی مرکب فعلی ضمیر د نه ځپل ځای
د نحوی آو د جملے د سرو جنی کلمے نه وروسته راځی: پرون مے ډوډاپه،
ملک مے پرون و بلی .

# دکرو فرع

دکرو فرع لکه چه د صفت په څیر نے کښے بیان شو د قیاسیه صفاتو څخه کښل کیږی او د (فاعل اسم، مفعول اسم، مشبهه صفت، د فاعل مبالغه) څخه عبارت دهٔ ی دوغه له لاملهٔ چه دکره (فعل) څخه جوړیږی نو ځکه هریو ته یئے دکره فرع ویل شوے.

# فاعل اسم

فاعل اسم هغه کلمه ده چه دفعل کوونکی ښئی دغه هم دغسے جوړیږی چه د مصدر دروستئی توری چه (ل) ده ی لرے کیږی د پاتے په وروستهٔ کښے چه دفعل ماده ده د مذکر دپاره (ونکی) او د مؤنث دپاره (ونکے) راوړل کیږی:

| مصدر | دفعل ماده | مفرد فاعل اسم |
|---|---|---|
| وهل | وه | وهونکی |
| تلل | تل | تلونکی |

| | | |
|---|---|---|
| وتل | وت | وتونکی |
| ځغل | ځغو | ځغونکی |
| رہبرول | رہبرو | رہبرونکی |
| رژول | رژو | رژونکے |
| خوندیکول | خوندیکو | خوندیکونکے |
| کېمدل | کېمد | کېمدونکے |
| رہبرېدل | رہبرې | رہبرېدونکے |

## مفعول اسم

مفعول اسم ہغہ اسم دہ ی چہ فعل پر ہغہ واقع شوہ ی وی پہ لاندینو دولونو سرہ جوړ یږی:

۱ — د متعدی (ل) والا مصادرو آو د ہغہ د ول (ول) والا آو (ېدل) والا مصادرونہ چہ د فعل مادہ ئے صفت یا د مفعول اسم محقق یا منسوب اسم

نه وی د مفعول اسم اشتقاق ونه سے کیبږی چه د مصدر په وروستهٔ کښے (ه ی) راوړل کیبږی:

| مفعول اسم | مصدر |
| --- | --- |
| وهلهٔ ی | وهل |
| کېنولهٔ ی | کېنول |
| رېبهٔ پړلهٔ ی | رېبهٔ پړل |

کله کله (شوهٔ ی) هم دوه نه دهٔ ول مفعول اسم په وروستهٔ کښے راوړل کیبږی: وهلهٔ ی شوهٔ ی، کېنولهٔ ی شوهٔ ی.

۲— د هغه دهٔ ول (ول) والا او (پهٔ ل) والا مصادر وڅخه چه د فعل ماده ئے صفت یا د مفعول اسم مخفف یا منسوب اسم وی او هم د (کول) او (کېدل) والا مصادرو نه د مفعول اسم اشتقاق د نه سے کیبږی چه د مصدر نه د مصدریت نښه لرے کیبږی د پاتے په وروستهٔ کښے (شوهٔ ی) راوړل کیبږی:

| مصدر | مفعول |
|---|---|
| غوزارول | غوزارشوی |
| غوزارېدل | غوزارشوی |
| پرےکول | پرےشوی |
| پرےکېدل | پرےشوی |

## دفاعل مبالغه

دفاعل مبالغه هغه صيغه ده چه ديوے چارے دظهور زياتوالے دفاعل څخه ښئي دغه صيغه په لاندينو دولو نو سره جوړېږي:

۱ــ دفعل دمادے په وروستو کښے دمذکر دپاره (ندوکے) آو دمؤنث دپاره (ندوکے)، راوړل کېږي: ژړندوکے، وېرندوکے، کړېندوکے.

۲ــ دفعل دمادے په وروستو کښے دمذکر دپاره (نډ) آو دمؤنث دپاره (نډه) راوړل کېږي: ګرېنډ، ترهېنډ، بهېنډه.

۳ — د فعل د ماده یا د یوه اسم په وروستګینې (اوو) راوسل کېږي:
غوښاوو ، جلراوو .

## مشبهه صفت

مشبهه صفت هغه صیغه ده چه د فاعل تل والی (مداومت) پریوه چاري باندې ښئي ، مشبهه صفت په لاندېنی ډول سره جوړېږي :

۱ — د یوه اسم په وروستګینې (مار) راوسل کېږي لکه : جګړه مار ، دودي مار .

۲ — د یوه صفت اسم په وروستګینې (ن) راوسل کېږي : دارن ، خاپورن (۱) .

۳ — د یوه صفت اسم په وروستګینې (ګر) راوسل کېږي : لوبګر ، کودګر .

۴ — د یوه اسم یا د مصدر اسم په وروستګینې (زن) راوسل کېږي : تورزن ، لامبوزن .

(۱) د (ن) توری د منسوب اسم نښه هم ده لکه : ژاولن ، مګر د معنی څخه ښکاره ده چې : که د یوې کلمې په وروستګینې (ن) ده او د فاعلیت معنی ورسره وه هغه کلمه مشبهه صفت ده ، که د فاعلیت معنی ورسره نه وه هغه کلمه منسوب اسم ده .

۵ — د فعل د ماده پـه وروستـه کښې ( نـدوی ) ، او سـرل کیـږی :
ساتندوی ، گڼندوی .

که دوغه پاسنی صفت موصوف مؤنث وی د پاسنو نبو په وروستـه کښې
(۵) هم زیاتیږی : جگړه ماره ، د ارنه ، لو بگره ، لامبوزنه ، گڼندویه .

دریمه څانګه

# ادوات

لیا

# توري

د آلې توره ئ

ه ی

آله هغه شی ده چه د یوه چارې د اجرا د واسطه وی. هر کله چه د ځینو اسمانو په واسطه کښې د نه توره ئ راشي هغه اسم د آلې اسم ګرځی لکه چه تفصیلات ئې د لاندې څانګې په لاندې څپرکی کښې

بیان شوی.

## د احتمال توری

### کوندے ، لکه چه

هر کله چه د احتمال بیان مد عاوی د غه توره ی استعمالیږی : کوندے کاله نه تلله ی وی ، لکه چه د غه کور نه پیږی چه ترهوسه رانه غذی .

## د استحسانت توره ی

### تر

استحسانت وتحت وطلب په معنی آو استعلا مقابل ده ی : تر مېز لاندے ، تر ونږ لاندے ، په هغه نسبت کښے چه د استعلا په کښے نه وی هم استعمالیږی : تر هغه نه راته نېږ دے دے .

په دغه سے نسبت کښے د (پر) د توری استعمال د فصاحت مخالف بلکه غلط ده ی . (پر) چه د استعلا توری کښے لے بیان شوه ی .

په هغه نسبت کښې استعمالېږي چه استعلا په کښې مقصود وي: پر تا جګ ده ی .

## د استدراک ادوات

### خو ، مگر ، اما ، لیکن

لمړنی پښتو دوه یم پارسو او وروستي دوه عربي دي . ټول د استدراک ادوات دي ؛ د پرانده ی سره وکړ خو موفق نشو . وروستي دواړه هم په هغه معنی او په هغه ځای کښې استعمالېږي خو چه لمړی وي وروستنو د روته دومره ضرورت نشته .

استدراک د ادراک وطلب په معنا ده ی دغه ادوات د دوه یمې جملې په سر کښې چه لمړی جملې وهم لرې کوی ؛ راځي . ځکه چه د نفی او اثبات له لامله د دغو دو جملو په منځ کښې اختلاف او مغایرت وي مثلاً په پاسنی مثال کښې د متکلم مدعا د وېنې خبر په هول ده ی چه غائب موفق نشو . خو لمړی سر کښې هر کله چه جمله د ( د ېر کوشش ئې وکړ ) ایراد وي مخاطب گمان کوی چه موفق شو ځکه چه کوشش کوونکی د ېری وخت

موفق کیږی نو ځکه په دغه ځای کښے متکلم وائی چه (خو موفق نشو) تر څو چه د افادے نقصان اکمال شی.

(خو) کلمه د تهدید ادات هم وی لکه: ته خو لاړ شه! ته خو زده کړه مه کوه!

کله د تنبیه ادات شی: خو لاړ شه! خو وه وایه! خو نو ولے نه کښنے!

کله کله د حصر او قصر ادات وی. حصر دیوه حکم انحصار ده ی په یوه شی پورے لکه: ستا وظیفه خو د پښتو خدمت ده ی، یعنے بل څه نه ده ی چه په دغه کښے خدمت پښتو پورے حصر شوه ی.

د قصر ادات د هرے کلمے نه چه وروسته راشی هغه کلمه (مقصور) او بلے (مقصور علیه) شی لکه چه پاسنی مثال کښے وظیفه مقصور او پښتو خدمت مقصور علیه ده ی.

کله کله د دغه پر ځای د (یواځے) یا (خاته) یا (خاله) کلمے استعمالیږی: مثلاً بالته څه یواځے تلله ی وم. چه په دغه کښے تلل متکلم پورے حصر شوه ی.

## د استثناتوري

### بې ، پرته

(بې) د استثنا ادات ده ، د مستثنا نه مخکې راځي ، نول ، رغل بې احمد .
مګر د استثنا دپاره یو اځې د پر لېر استعمالېږي د پري وخت ، (له) لیا (د)
سره یو ځای استعمالېږي ؛ نول ، راغله بې له احمد ، نو لو دو بیل بې د ویک .
هر کله چه د جنس اسما تو سره راشي د نفي معنا ښي ؛ بې کوره ، بې ځلې .
(پرته) د نه هم د پاسنی پشېر د استثنا د پاره په هماغه معنی او موقع کښې استعمالېږي ؛
پرته له تورکه نور نول ها لکان زده کړه کوي . نول راغله پرته د احمد .
که د چینیات او خوشې د پیلو په معنی استعمال شي ، مالته اداث نه ده ی .

## د استعلاتوري

### پر ، باندې

لره ی د اسم نه مخکې او د وه یم د اسم نه وروسته راځي ؛ پر آس ، کتاب باندې .

کله دوا سره یو ځای استعمالېږي: پر کتاب باندې.

کله کله د (تفضیل اوات) شی لکه: پر ماعالم ده ی، پر ده باندې غښتلی ده ی.

## د استفهام توري

چا، څوک، څه، کوم، کومه، کومې، څومره، کله، چیرته،
چېرې، ولې، څه و پاره، څه له، څنګه.
تفصیلات یې د لړی ثانیګې په درېیم ټوک کښې بیان شوي.

## د استکراه توري

### اوف

د استکراه په وخت کښې یو اوځې لیا د ځلې په سر کښې استعمالېږي:
اوف، اوف څومره ناوله ی ده ی.

## د اضافت ادات

د

که په اضافي جملو کښې د مضاف اليه نه مخکښې راشي د اضافت ادات شي : د کوښې ور،
د پښتو ژبه .

## د بيان توري

چه

(چه) د اسمائو او افعالو نه وروسته د بيان د پاره راځي : آخک چه کابل ته تللی ېيائي
احوال بېرته نه ده راغلی ، تا چه ده ويل خه په ره پوه شوم .
کله د تشبيه او تمثيل ادات وي : چه د بل عزت کوئې خپل عزت کوی .
کله د مفاجات ادات شي : خبرې نې کولې چه ورغلم .

## د پلو توري

را ، ور ، ور

پلو : سمت او جهته ته وائي ، هر کله چه د غه توري د ځينو مصادرو او افعالو سره راشي

دخوا آو پلو معنا بنئی :

(۱) دفعل مخ آو جهة متکلم خواته ښئی : را ځی ، را ښېږی ، را کاږی .

(۲) دفعل مخ آو استقامت ومخاطب خواته ښئی : ور ځی ، ور ښېږی ، ور کاږی .

(۳) دفعل مخ ، غائب خواته ښئی : ور ځی ، ور ښېږی ، ور کاږی .

کله چه دځینو الفاظو آو مصادرو سره یو ځای شی ځینې مصادر تشکیلوی چه دغو مصادرو ته (مزید فیه) وییل شوه ی : راغلل ، درغلل ، ورغلل ، راپسېره کول ، درکول ، ورکول .

## دتأثر توری

اخ ، وخ ، ویش ، اوف ، وی ، ووی وی

**تأثر** : دیوه شی تر تأثیر لاندې بو سړی دل آو تأثیر حس کول ، مکدر کېدل آو حزن آو کدر حس کول ده ی نو هر کله چه چاته کوم مادی یا معنوی خوږ ورسېږی دخپل تأثر آو تألم دښودلو دپاره پاسنو تورو نه یو یو اسځې لیاد کومې جملې آو عبارې په سر کښې ذکر کوی : اخ لاس مې خوږ شو؟ وخ زړه مې له د پره غمه وچاوده ،

ویشس پښه مې ژوبله شوه! اوف له د پره غمه مړ شوم! وی خدایه دغه څه حال دی، وئ آ وئ ملا مې ماته شوه.

## د تاکید توری

خو

دعربی (البته) مقابل دی چه د (مطلقاً) په معنا دی او د تاکید د پاره راځی؛ څوک چه مسلمان وی خو د به غزا کوی! څوک چه به ګرځی خو د به پرځی.

## د تانیث توری

ه، ے، ی، ا

د لړی ځائے په لړی څپرکی کښے ئے بیان شوی.

## د تحسین توری

آفرین، واه، واه واه

دغه توله هر کله چه تحسین او تقدیر مدعاوی د جملے په سر کښے استعمالیږی؛ آفرین ښه کار دے وکړ، واه څه ښه شعر دے وییلی، واه واه څه ښه هنر دی.

## دتحسر توری

ی، ہی ہی، ہی آئی ہی، ہرگورہ، ارماند

تحسر ہغه دہ ی چه یوشی دسری زړه وغواړی لاس ته ورنشی آوزړه ئے ورپسے ہینی ہینی شی لیادیوه شی په فوت آو ورکیدلوسره ی تاسف آو تلہف دکی. په دغه سے حال کښے پاسنو توروڅه یو یواسے لیادیوسے جملے آو عبارے په سر کښے وییل کیږی : ہی څه ښے شے آو وسځے وے ! ہی ہی څه ښه سړه ی وه مړشو؟ ی آئی ہی څه ښه ماڼړی وه خوشے ئے ورانه کړه! ہرگوره چه په لاس رانه غږی! ارماند چه پښے مے گودے دی.

## دتحفظ توری

بون، به، بہنه، وار

تحفظ ساتنے ته وائی ہر کله چه دیوه شی ساتنه چاپورسے اسره ونیسی دغه توری استعمالیږی:

(بون) دخپنو حیوانا تو آو مواشیو داسمانو په ورو سته کښے راځی آو مذکر محافظ

آو ساتون سبلي لکه : شپږ بون ، آسبون .

( ﺑﻪ ) د ځينو ځيوانا تو آو مواشيو د اسمائو په وروسته کښې راځي آو مذکر محافظ آو

ساتون سبلي لکه : آسبه ، خربه .

کله کله د بے سا ہو جنس اسمائو نه وروسته هم راځي لکه : خستبه ، ارگبه .

( بنه ) د ځينو ځيوانا تو آو مواشيو د اسمائو په وروسته کښې راځي آو مؤنث ساتون

سبلي لکه : غوبنه ، خربنه .

( دار ) د پارسو څخه مأخوذ ده ی آو د اسمائو په وروسته کښې راځي : پهره دار ، تهانړه دار .

## د تشبيه توری

سے ، لکه ، پڅير ، غونډے ، گنړه ، گينے ، گوا ، گوا کے (۱)

د غه توٌل د تشبيه ادات دی چه د تمثيل ادات هم ورته ويل کيدای شي .

تشبيه ورته کول د يو شي د بل شي ته ده ی نو ځکه د غه توری د يوه شي د ورته

کولے په وخت د بل ته با استعماليږی .

(۱) ، ( په شان ، شانته ، په دول ، په راز ) کلمات هم د تشبيه د پاره راځي .

(سے) هر کله چه د اشارے اسمونو سره راشي تشبيه آو تمثيل بيانوي :
دغه سے ، داغه سے ، هغه سے ، هو غه سے .

(لکه) د تشبيه په وخت کښے د مشبه به نه مخکښے راځي : لکه کوکی .

(پڅېر) د تشبيه په وخت کښے د مشبه به نه وروسته راځي : تيږ سے پڅېر .

(غوندے) دغه هم د تشبيه په وخت کښے د مشبه به نه وروسته راځي : ځمري غوندے .
کله دوه يم (لکه) و ورے يم آو ځښلورم سره يوځاي راځي : لکه سپوږمۍ پڅېر
لکه نر غوندے .

(ګنړه) رېده ی غوره ړه ی ګنړه د اک په سرو کالينو فرش شوه ی .
کله د تعريض په مقام کښے استعماليږی چه په دغه حال کښے (تعريضي تشبيه)
ورته وائي : ديو اسے پښتو ئے چه زوه کره ګنړه دوه ی هم پښتون شو ، ګنړه
شاعر شوه ی .

(ګينے) په هماغه معنا آو مقام چه پاسنه ی استعمالېده استعماليږی : وا بنه
شنه شوی وه ګينے د اک په زرغونو بخملو فرش شوه ی وه ، ګينے تندر ووری .

(گوا) د (گویا) ځینې چه پارسو ده ی مأخوذ ده ی په هغه معنا آو مقام چه پاسنی دوه استعمالېدل، استعمالېږی : د غه سې تیاره ده گوا شپه شوه، گوا ماگرموی.

(گواکې) د (گویا) آو (که) ځینې چه پارسو دی مرکب ده ی په هماغه معنا آو مقام چه پاسنی ورسې استعمالېدل د غه هم استعمالېږی : بر پښناوې ولګېدې ځښته د پره ، نرا شوه. گواکې ورځ شوه. گواکې ده ی هم پښتون ده ی.

## د تصدیق توری

هو ، هوکې ، یې

تصدیق :
دیوې خبرې لیا دیوې چارې دسم والی آو رښتیاوالی منل آو بیان ده ی.

هر کله چه دیوې خبرې لیاکړه تصدیق مدعاوی یوله دغواړ تو ځینې استعمالېږی.

نا کل سې دویو ونکې خوښې پورې اړه لری : مثلاً که څوک چانه پښتنه وکی چه پښتو زه ور سمې شوه ؟ مخاطب د تصدیق دپاره ووائی (هو) لیا (هوکې) لیا (یې).

## د تصغیر توری

ک ، ه که ی ، و نه ی ، و نه که ی ، گه ی ، که ، کی ، ه گی ، و نې ، گی .

دلري ځاينگے په لري ځيرکي کښے ئے بيان شوه ى .

## دتعجب توري

په ، په هه ، په هآ هه ، په ها ، په آها ، پوهو ، پو هآ هو ، اوهو ، او هآ هو ،
ابے بے ، ابے بآ بے ، څه ، څنگه ، څومره ، هے .

(په ) دتعجب آو استغراب ادات ده ى : په ! څومره د ېرلږ دى ! په ! تو ماشه خبرے کوى .

(په هه ) هم دتعجب آو استغراب ادات ده ى : په هه ونه سړى په دے کونے کښے ځائ پېږى .

(په هآ هه ) دتعجب ومبالغے وپاره استعماليږى : په هآ هه څومره د ېرخلک غوند شوى .

(په ها ) دوغه آوو (په هه ) داستعمال محل يو ده ى .
(په هآها ) دوغه آوو (په هآ هه ) داستعمال محل يو ده ى .
(پو هآو ) دوغه آوو (په هه ) داستعمال محل يو ده ى .

(**پوهوهو**) دوغه آود (په ټه ټه) د استعمال محل یو ده ی.

(**اوهو**) دوغه آود (په ټه) د استعمال محل یو ده ی.

(**اوهوهو**) دوغه آود (په ټه ټه) د استعمال محل یو ده ی.

(**اپے هے**) دوغه آود (په ټه) د استعمال محل یو ده ی.

(اپے ټے ټے) دوغه آود (په ټه ټه) د استعمال محل یو ده ی.

(**څه**) دیوه کیفیت و تعجب دپاره استعمالیږی: څه ښه لیک سے لیکلی.

(**څنګه**) دغه هم دیوه کیفیت و تعجب دپاره استعمالیږی: څنګه چټک چټک ځی.

(**څومره**) دمقدار و تعجب دپاره ده ی: څومره ډیر ملخ دی.

(**ها**) دتعجب ادات ده ی: ها ته لا مکتب ته نه ځے.

کله کله د تحضیض معنی ښئی: ها! ته لا ناست ئے، ها! ته لا ورته ګورے.

کله کله د تنبیه معنا هم ښئی: ها! پام کوی.

## دتعلیل توری

ځکه، و لے چه، چه، له لا مله

د غه درست د تعلیل توری دی او په هغو جملو کښی چه دیوه حکم علت او سبب بیانه وی

داخلیږی .

(ځکه) په هغو جملو کښی راوسال کیږی چه دیوه حکم علت او لامل بیانه وی : خود په مینه

سره کوو ځکه چه پښتانه او سره عزیزان یو .

(ولی چه) پاسنی ټکی په هماغه موقع او معنا استعمالیږی : پښتانه سری له

بنائی چه پښتو وه وائی او پښتو وکی ، ولی چه پښتون په پښتو سره

پښتون وه ی .

(چه) پاسنو ټکی د یوه حکم علت بیانه وی : دروغ مه وایه چه بیا به جزا وه وینی .

(له لامله) که څه هم ځینی خلک د غه ادات بولی ، خو ادات نه وه ی ځکه د (له)

او (لامل) څخه مرکب وه ی چه لمړی ی د مفعول منه ادات وه ی او دوهیم د سبب په معنا

وه ی اما دوهیم د نه استعمال علت په نوروځایو او مواقعو کښی د (سبب) د لغت

رواج او عمومیت مینډل وه ی چه هغه هم د عربی ژبی د نفوذ اثر وه ی بنائی چه وروسته

تر دغه په چپسله معنا استعمال شی او د بیان او خلمی سره رو نه ی کی .

# د تعمیم توري

هر، هره ، واره

تعمیم : یو شی خصوصیت نه وېستل او عمومیت ته شاملول دی .

( هر ) د مذکر مفرد سره راځي : هر سړی ، هر څوک ، هر چا ، هر یو تن .

( هره ) د مؤنث مفرد سره راځي : هره ښځه ، هره ورځ ، هره خوا .

( واره ) د جمع سره راځي : واره خلک ، واره چارے .

# د ذاتی د تقلیل توره ی

بخوند

دلری ځاینګے په دوه یم څپرکی کښے بیان شوه ی .

# دلون د تقلیل توری

چک ، وبر

دلری ځاینے په دوه یم څپر کی کښے بیان شوه ی .

# د تکثیر توری

## ښو ، ښومره

(ښو) که څه هم مقدار بیانوی خو کله کله د تکثیر ادات هم گرځی لکه : ښو وارے مے ورته وویل .

کله کله د تاکید د پاره مکرر استعمالیږی : په ښو ښو واروے مے ورته وویل .

کله کله د تقلیل ادات هم کیدای شی مگر هر کله چه تقلیل مدعا وی باید هغه د (یو) کلمه ورسره ذکر شی . مثلاً که وویل شی چه : لکه چه د هرے روپی لرے ؟ د غلته که مخاطب مدعا د قلت بیان وی وائی : نه یو ښو روپی دی .

(ښومره) د غه هم د پاسنی په شان کله کله د تکثیر ادات گرځی لکه : خدای ښومره برهٔ ی ورکړ .

# د تمنی ادات

## کشکے

د کلام په سر کښے ذکر کیږی : کشکے تلهٔ ی وای ! کشکے پښتو با ندے د وخته پوهٔ شوهٔ ی وای ! کشکے بدای وای او د هرے روپی مے درلودای .

## دتنبیه آو تخفیض[1] توری

کنه ، بله ، هِلی ، مګر ، ها

(کنه) ترکیبا تو سره چه راشي دتنبیه آو تخفیض ادات شي لکه : وه وایه کنه وبلې غلې سړی ! لار شه کنه ولې خوشې ناست یې ؛ علم زده که کنه ولې خوشې ګرځې .

کله کله د تصدیق دتاکید ادات شي : هو کنه خپله چاره مو وه .

(بله) بله ژر شه ، بله منډې .

(هِلی) د غه آو پاسنه ی دواړه یوه معنا لري خو د غو مره ده چه بغه د مفرد آو دغه د جمع د پاره استعمالېږي : هلي ژر شي ، هلي منډې .

(مګر) مګر مانه پېژنې .

(ها) د تنبیه آو تهدید د پاره راځي : ها ! پام کوه چه و به دې وهم .

کله کله د قبول ادات هم شي لکه بجه د قبول په ادوا تو کښې یې هم ذکر شوی .

(۱) تخفیض یعنې کړنده ی کول .

## د جزا توره ی

### نو

د جزائي جملے نه مخکے راځي : که ته راغلے نو ځه به هم درشم .

تفصیلات د ے په نحو کښے وکتل شي .

## د حاصل مصدر توری

آوه ، نه ، ه ، نگ ، ون ، ښت ، الف

د لسري څانگے په څلورم څپرکي کښے ئے بیان راغلے ی .

## د شرط توری

که ، چه ، که څه هم ، تر څو ، تر څو چه

(که) یو حکم بیا یو فعل بل پورے مشروط او مقید کوي او د مشروط علیه نه مخکے راځي :
که ته راغلے څه هم درځم ، که د ے مانړي سازه کړه ښځه ئے هم سازوي .

(چه) د غه هم د پاسني څېر یو حکم بیا فعل بل پورے مربوط او مقید کوي او د مشروط علیه نه مخکے لیا ورو ستے راځي : چه څه راغلم بیا ته لاړ شه ، ته چه راشے څه به لاړ شم .

(کہ څہ هم) : کہ څہ هم ماتہ تاوان راورسېږي خو سپين ږيري ولا مې ځمک ونہ کړ.

(تر څو) يو حکم يا يو فعل بل پورې مشروط او مقيد کوي او د مشروط عليہ نہ مخکې راځي او پہ عين حال کښې د وخت انتهام بيانوي : تر څو تہ رانہ شې زہ به نہ راځم، تر څو تہ راشې ځہ بہ هم د غلتہ يم.

کلہ د وخت د انتها استفهام کوي : تر څو پورې بہ روزگار ناست يې؟

(تر څو چہ) پہ داغہ موقع او معنا چہ پاسنئ تورہ ي استعمالېږي ؛ د غہ هم استعمالېږي.

## د صلې تورې

چہ

تفصيلات ئې د لمړي ځانګې پہ درېيم څپرکي کښې راغلي.

## د مکان د ظرف توري

نږدې ، يا نږدې

د لمړي ځانګې پہ لمړي څپرکي کښې بيان شوي.

# دعطف توری

آو ، هم ، چه ، که ، لیا ، لا ، بلکه

( آو ) دوه کلمې لیا دوه جملې سره نښلوی ( مربوطوی ) لکه : آحمد آو وتمک راغلل . پښتو ژوندی شوه آو پښتانه سرلوړی شول .

( هم ) بعضې شی سره غوندوی چه اشتراک په کښې نه وی : لکه چه د غه پوه وه بعضې بل ځای همدغه ښه پوه وه .

دوه شیه په یوه حکم کښې لیا دوه حکمه په یوه شی کښې سره غوندوی : هم آحمد ویل هم وتمک ! آحمد هم دوست هم ځای ویکه . کله د اقتران ادات شی لکه : هم غاسه .

کله کله د تشریک ادات شی لکه : هم نومی ، هم سبق .

( چه ) دغه هم دوه شی په یوه حکم کښې غوندوی : یواځې تا وانی نه چه سپک هم شو .

( که ) دوه شیه په یوه حکم کښې غوندوی آو د طلب د تعین دپاره راځی : دګوری چه آحمد راغی که وتمک ؟

کله دشرط ادات وی لکه چه دشرط په توړو کښے هم ذکر شوه ی .

(لیا) پاسنی ځچپر دغه هم دوه شیه په یوه حکم کښے غونډوی آو یو غواسی :
آخګ لیا وتګ راوپیږه .

(لا) دتنبیهی عطف ادات ده ی : څه ئے راتکړه لا ئے څه راخخه واخیسته .

(بلکه) دغه هم پاسنی ځچپر دوه شیه په یوه حکم کښے غونډ وی : یو اسے روپی ئے
نه ګټلے بلکه عزت ئے هم وګاټه .

## دقبول توری

هو ، هوکے ، یے ، ها ، بنیه

(هو) هر کله چه یوه خبره لیا یوه چاره ومنله شی آو په منلو آو اجرا کښے ئے څه تردد آو
شبهه نه وی په دغه حال کښے دغه توره ی یو اخے لیا دبغے جملے په سر کښے چه په هغه
سره دقبول اظهار کیږی استعمالیږی مثلاً که آخګ پروتګ باندے نوپک خوښی
آو ونوپک بیع معین آو دواړو په منځ کښے موافقت راشی آو څوک دآخګ نه پښتنه
وکی چه تاخپل نوپک په زر روپی پروتګ باندے خرڅ کړ هغه دخپل قبول داظهار دپاره

وائی (هو)، لیا کډو تګ نه پښتنه وشی چه تا د آخلف د غه نو ټپک په زړ روپی واخیست
بنغه هم د چیل قبول د اظهار د پاره وائی (هو) لیا که څوک د چانه پښتنه وکی چه بازار ته
تلله ی وے؟ وائی (هو تلله ی وم) آو که پښتنه وکی چه بازار ته ځے؟ وائی (هو ځم)
لیا که وه وائی چه ګیڼز به جوړ ګے ته لاس شے وائی (هو لاس به شم)، ګنړه هر کله چه په
قبول آو اجرا کښے قطعیت وی آو تردد آو شبهه نه وی (هو) استعمالیږی.
په ماضی کښے قطعیت وی ځکه چه تیره شوے وی په حال کښے هم د غه قطعیت
وی اما په هغه حال کښے چه د مضارع په دول استعمال شی یعنی قبول آو اجرا کښے استقباله
پورے اړه ونیسی آو هم استقبال دوے د دے لری لیا په هغه کښے هم د تصمیم
په حیث قطعیت وی لیا شبهه آو تردد په کښے وی نو که قطعیت ئے لاره په هغه کښے
هم د غه توره وی استعمالیږی مثلاً که څوک چانه پښتنه وکی چه جوړ ګے ته ځے؟ که عزم
ئے راسخ وی وائی (هو) بعد غه ئے که چاته وه ویل شی چه کاده ی به وا خلے؟ که د مخاطب
عزم کلک وه وائی هو وا به ئے خلم.
اما که قبول کښے قطعیت نه وی (چه هغه هم په مضارع آو استقبال پورے اړه

نیسي آو ماضي کښې نه وي ) بو نا لنه (سنبیه) استعمالیږي.

د تصدیق د پاره هم استعمالیږي لکه چه د تصدیق ترعنوان لاندې بېل ذکرشوه ي.

(هوکې) دغه آو پاسنۍ توره ي د استعمال په محل آو په معنی کښې څه فرق نه لري دهغه لیاو دغه انتخاب د ویونکې خوښې پورې اړه لري مؤلف دغه پرلس ي باندې بنه آومرجح گڼي. دغه هم پاسنۍ پڅېر د تصدیق د پاره استعمالیږي لکه چه د تصدیق ترعنوان لاندې بېل هم ذکرشوه ي.

(سېلې) په هغه معنا آو محل کښې چه لسرمېنې دوه استعمالېدل استعمالیږي انتخاب دهغو دوو لیاو دغه ، د ویونکې خوښې پورې اړه لري. پاسنو دوو پڅېر د تصدیق توره ي هم ده ي لکه چه بېل د تصدیق ترعنوان لاندې بېل هم ذکرشوه ي.

( ۱ ) د ېری وخت د ندا په ځواب کښې استعمالیږي په نورو ځایو کښې چه په لمړ ي توري کښې بیان وشو که څه هم ځینې کسان ئې استعمالوي مگر د ېر لږ آو نادر ده ي.

کله د تنبیه آو تهدیدادات شي لکه چه د تنبیه په تورو کښې ئې هم ذکرشوه ي.

(ښيه) د لمړنۍ دوو توروستم د ،ی په هغه قبول کښې استعمالیږي چه قطعیت په کښې نه وي لکه: ښيه ځم، ښيه لاس به شم. کله کله د تاکید د پاره مکرر استعمالیږي.

د استماع په موقع کښې د کومې خبرې د آورېدو د انتظار او د حاضرۍ د اظهار د پاره هم استعمالیږي مثلاً دوه کسه چه غواړي په کومې موضوع کښې خبرې وکي هغه سړی چه غواړي د بل خبرې واوري، دغه د پاره چه هغه بل پوه شي چه دی ځما د خبرو د آورېدو ته تیار دی وائي (ښيه) یعنې ځه آورېدو ته حاضر یم وه وایه.

هر کله چه د چا فکر په یوې چارې کښې ستر دوی د یوې استفهامیې لیا بیانیې جملې په سر کښې "اوس لیکېږي تر څو چه مخاطب په خپل تائید لیا تردید سره د متکلم تردد لرې کړي: ښيه گیلزبلې ته ځو که نه؟ ښيه ما پښتین به د اگ ته ووځو د جاج وهلو او فکر کولو په وخت دیوې خبرې د وېلو لیا دیوې چارې د کولو د پاره د یو نیکه ی دوه وارې په اوږدوه نګ سره (ښيه) وائي او روسته په جاج وهلو او فکر کولو پېل کوي.

د اعتراض او تعجب په موقع کښې هم استعمالیږي: ښيه ته ولې ولاړې!
ښيه دغه خبره ما کړې! ښيه ده ی هم پښتون شو.

د تأکید د پاره هم تر امر لیا التزامی فعل وروسته را و سېل کېږی : د آخڅ پښتنې ته یو ځل لاړ شه ! ښه ! ځا خبرې ورته و وایه ! ښه !

د امر لیا التزامی فعل نه وروسته د خپلې پو هېنې د اظهار آو د متکلم د تطمین د پاره هم استعمالېږی مثلاً هر کله چه و تک چا ته و وېل چه ( د آخڅ د پښتنې ته لاړ شه ) مخاطب وائی : ښه ، آو که یې و وېل چه ( ځا خبرې ورته و وایه ) مخاطب وائی : ښه !

## د قسم توری

پهٔ ، گو

( پهٔ ) د مقدسو اسمانو نه لیا هغه شی نه چه پرې لوړه کېږی مخکې راځی : پهٔ خدای .
( گو ) د مقدسو اسمانو لیا هغه شی نه چه پرې لوړه کېږی وروسته راځی : خدای گو .

## د لونیه صفاتو د تأکید توره ی

تېک

تفصیلات یې د لمړی ځانگې پهٔ د وه یم څپرکی کښې راغلی .

## دلیاقت توره ی

د

دغه توره ی لکه چه د اضافت توره ی ده ی همدغسے دلیاقت آ ولزوم توره ی هم ده ی· دوژلوده ی ، دوهلوسره ی ده ی ، دمشرتوب ورنه ده ی ·

## دمصدر توری

ل ، ول ، ہل

دلمری ځانگے په ځلورم څپرکی کښے ئے بیان راغله ی ·

## دمفعول توری

ته ، تر ، پورے ، په ، کښے ، د ، له ، نه ، ځنی ، څخه ، تنے ، ترے ، د پاره ، لره ، له ـ سره ، باندے

تفصیلات ئے دلمری ځانگے په لمری څپرکی کښے بیان شوی ·

د (پورے) ادات د زمان آو مکان انتها ښئی ·

هر کله چه د زمان انتها وښئی نا لته د (توقیت) ادات شی لکه : گټیزه پورے نه ځم ،

تر هوسه پورے خبرے کوی .

کله کله د حصر او قصر ادات شی لکه : تا پورے مے کار دهٔ یعنی بل چا پورے مے نهٔ دهٔ .

## د مقدار توری

مره ، ونه

هر کله چه د غه او دا توته د (شو) او د (اشارے اسماء) سره راشی مقدار بیانوی نو ځکه د مقدار ادوات دی : شومره ، شونه ، دغومره ، دغونه ، هغومره ، هغونه ، داغومره ، داغونه ، هوغومره ، هوغونه .

## د ندا توری

ه ، یے ، وه ، و ، اے

(ه) د اسماؤ او هغو جملو په وروستنه کښے چه د اسم علم ولړی راځی او مذکر مفرد وی پاره استعمالیږی : وګله ! وروه ! ځما د زړهٔ ګی سره !

(یے) د اسماؤ او د هغو جملو په سر کښے چه د اسم علم ولړی راځی .

